بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب پېژندنه


| | |
| --- | --- |
| د کتاب نوم: | پښتو لیکنی سمون |
| لیکوال: | محمد اسمعیل یون |
| خپرندوی: | یون کلتوري یون |
| چاپشمېر: | ۱۰۰۰ ټوکه |
| چاپکال: | ۱۳۸۷ل کال |
| د لیکوال پرله پسې نومره: | (۳۰) |
| د خپرندوی پرله پسې نومره: | (۳۰) |
| کمپوزر: | ضیاءالرحمن ضیاء |

# د لومړي چاپ سریزه

دا اثر مې له نن څخه یو کال دمخه (۱۳۸٦ل کال) په وروستیو کې بشپړ کړی و، ژوري هئیت زما د ترفیع لپاره ومانه، خو ما هغه وخت ځکه چاپ نه کړ، چې غوښتل مې تر علمي ترفیع وروسته یې یو ځل بیا وگورم او زیاتونې په کې وکړم او هم یې ځینو لیکوالو ملگرو ته د کره والي لپاره وړاندې کړم. د تېرو کلونو په بهیر کې که څه هم له گڼو بوختیاوو سره مخامخ وم، خو د دې تېر یو یونیم کال په بهیر کې مې خپلو کلتوري کارونو ته تر هرڅه زیاته توجه وکړه. دا اثر مې یو ځل بیا وکوت او ځینو لیکوالو ملگرو ته مې د کتنې او کره کولو لپاره ورکړ، دا دی تر بیا کتنې او سمون وروسته یې د قدرمنو لوستونکو مخې ته ږدم، پوره باور دی چې تر چاپ وروسته به مو قدرمن لوستونکي لا کره والي ته وهڅوي او د وخت په تېرېدو سره به دا بهیر د پښتو لیکدود د لا سمون سبب شي.

د همدې بهیر د لا برې په هیله
محمد اسمعیل یون
۱۳۸۷ل کال د کب ۲۵مه نېټه
ارگ، د جمهوري ریاست ماڼۍ

# (( پښتو ليکنى سمون ))

# يوه په زړه پورې هڅه

د يوې ژبې د ليکدود سمون او د هغه د اصلاحي بهير ارزونه د ژبې په پرمختګ کې کارنده ونډه لري. له نېکه مرغه پښتو ليکدود وخت پر وخت د زيات کره والي پر لوري ګامونه اخلي. د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځي د پښتو څانګې استاد ښاغلي پوهنمل محمد اسمعيل يون يوې ډېرې ښې او ضروري موضوع ته پام شوى او د خپلې علمي تر فېع (پوهندوى رتبې) لپاره يې داسې يوه موضوع (پښتو ليکنى سمون) ټاکلې، چې ارزښت اوضرورت يې ډېر زيات دى. اوس چې زموږ په هېواد کې رسنۍ ډېرې زياتې شوي، نو د ليکدود د يو والي او سمون په برخه کې هره نوې علمي هڅه بې له شکه چې ډېره ګټوره تماميږي. ځکه که چاپي، تصويري او نورې رسنۍ پر خپل وخت له ښه، کره، پوره او معياري ليکدود څخه کار وا نه خلي، نو ډېرې ژبنۍ ګډوډۍ او تېروتنې را منځته کېدلاى شي. اکثره ګډوډي موږ د يوه ښه معياري ليکدود په مرسته له منځه وړلاى شو. پوهنمل محمد اسمعيل يون همدغه ضرورت ته متوجه شوى او داسې يو علمي اثر يې دا دى رامنځته کړى، چې زموږ د ليکدودي ستونزو ډېرو برخو ته ځواب ويلاى شي. په دې اثر کې د اختلافي کلمو د سمون تاريخي بهير هم په ګوته شوى او دنويو اختلافي کلمو د سمې ليکنې معيارونه هم په ګوته شوي دي، د علمي ستونزو د

حل لپاره د پښتو غږيزې الفبې چارټ هم راوړل شوی او د نورو نومونو د يو والي او سمې ليکنې لپاره هم ښه وړانديزونه شوي دي. د پښتو د انشايي سمون لپاره يې ليکنښې او پښتو سربلونه او اوستربلونه هم په تفصيل سره بيان کړي دي.

زه په داسې حال کې چې د پښتو ليکني سمون په بهير کې دا اثر يوه ښه په زړه پورې زياتونه ګڼم او د ( پوهندوی) علمي ترفېع لپاره يې پوره او مناسب ګڼم، دې سره هيله لرم، چې د ژبو او ادبياتو پوهنځي پښتو څانګه کې د يوه درسي يا مرستندوی درسي کتاب په توګه هم ورڅخه ګټه واخيستل شي. دغه راز له ښاغلي يون څخه هيله کوم، چې د کتاب د ژر چاپ لپاره هم هڅې وکړي او تر چاپ د مخه د لوستونکو د معلوماتو د لا زياتوالي لپاره نورې ښلګې هم په کې راوړي او نورې هغه اختلافي کلمې هم وپلټي، چې لا اوس هم په ليکنۍ برخه کې په کې توپيرونه تر سترګو کېږي. زه يو ځل بيا ښاغلي پوهنمل محمداسمعيل يون ته د (پوهندوی) علمي رتبې لپاره د دې اثر د ليکلو له امله تبريکي وايم او له اړوندو مقامونو څخه هيله کوم، چې (د پښتو ليکني سمون) د ليکنې له امله نوموړي ته د (پوهندوی) علمي رتبه منظوره کړي.

د پښتو ليکني سمون د پراختيا او د پښتو ليکدود د لا کره والي او بشپړ يو والي په هيله.

په درنښت

پوهنوال محمد صابر خويشکی

سریزه:

# د پښتو لیکني سمون ضرورت

په دې کې هېڅ شک نه شته، چې لیک تر ژبې ډېر وروسته را منځته شوی، جوړ شوی او په اصطلاح اختراع شوی دی. پوهان په دې نظر دي، چې لیک د بشري ژوند د پرمختګ مهمه وسیله او د بشر ستره لاسته راوړنه ده. ژبپوهانو لیک د ژبې مادي استر او یا هم انځوریز شکل ګڼلی دی. د نړۍ په پوهانو کې خوشالخان هغه ستر عالم دی، چې تر هرچا زیات د لیک ارزښت ته ځیر شوی دی. د خوشالخان په نظر که لیک نه وای د دنیا دا دومره علمونه او کتابونه به نه وو. خوشال په خپل مشهور سیاسي، روزنیز اوټولنیز اثر (دستارنامه) کې: علم د وحشي اسپ په شان بللی او خط یې د قیضې په شان، چې وحشي اسپ پرې راملای شي، هغه خط دریېیم هنر ګڼي، چې کسب او کمال پرې حاصلېږي. خوشال وايي: (( علم او خط سره لازم او ملزوم دي، علم په مثال وحشي دی، خط لکه کمند چې وحشي پرې قید شي، دا هومره کتابونه به نه وو که خط نه وی، په حساب په کتاب په سیاق به څوک پوهېدل که خط نه وی، د جهان کار سره ټول په خط دی، لوی هنر دی، منزلت، مرتبت یې هم ډېر دی، قدر قیمت یې تر حساب تېر دی. که یې دولتمند زده کا زېب و زینت دی، که یې درویش زده کا د درویش دولت دی...)) [1] خوشال

---

(۱) دستار نامه، خوشال خان خټک، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۴۵ کال چاپ ، ۱۸ مخ.

که څه هم په ساده مثالونو کې د لیک ارزښت او اړتیا بیان کړي، خو د مانا او محتوا د ژوروالي له مخې یې د لیک ارزښت په ښه ډول څرګند کړی دی. د نړۍ ګڼو ژبپوهانو د لیک بېلابېل تعریفونه کړي، خو کوم قوت چې د خوشال په تعریف کې شته، په نورو تعریفونو کې په دې کچه نه لیدل کېږي. د خوشال د تعریف له مخې د علم زېرمه او پانګه د لیک نتیجه ده. رښتیا هم که چېرې بشر لیک نه وای رامنځته کړی، نو بل پښت او راتلونکو نسلونو ته یې د تجربو او پوهې انتقال ناشونی و. د سړي علم خو د فولکور او ګړني ادب په شان هم نه دی، چې خوله په خوله او نسل په نسل یو بل ته انتقال شي. د فوکلور د لېږد مهم لامل دا دی چې هلته هنري قوت او تخیل ورسره ملګری وي او له کوم فشار پرته د خوند په زور انتقالېږي، په علم کې که څه هم زیاته ګټه متصوره ده، خو د خوند او لذت کچه په کې ډېره کمه ده. په حقیقت کې د نړۍ د تفکر او تخیل د تجربو یو اوږد زنځیر اوتسلسل (ګړني ادبیات) هم وروسته د همدې لیک په واسطه د مرګ له حتمي ګواښ څخه ژغورل شوي دي. پیداګوژستان (ښوونپوهان) په دې نظر دي، چې د علم زېرمه د الفاظو په پانګه کې نغښتې ده، یا په بله وینا د الفاظو کثرت د مانا پر ډېروالي دلالت کوي. د انسان په ژبه کې د الفاظو او کلمو د زېرمې او زیاتوالي ظرفیت هغه وخت زیات شو، چې ژبه د لیک په واسطه د زېرمه کېدو او خوندیتوب جوګه شوه. د لیک په واسطه نه یوازې دا چې پخوانۍ پانګه خوندي شوه، بلکې د دې پانګې د زیاتونې او غځونې اسانتیاوې هم برابرې شوې، ژبه د هوا له څپو څخه د

یوه مقید او منسجم انتظام لوښي ته ولوېده او د انسان د اړتیاوو د خروب لپاره یې د غځونې قابلیت پیدا کړ، خو لیک هم، داسې نه دی، چې پر یوه ورځ رامنځته، پیدا او غني شو، لیک هم د ژوند اوږده کلونه او مزلونه وهلي دي. د نړۍ ګڼ شمېر ژبې د څو بېلابېلو او یا هم د مختلفو لیکدودونو او لیکښو تر پړاوونو تېرې شوې دي.

پښتو لیک یا لیکدود د (میخي)، (ارامي)، (خروشتي) او (یوناني) لیکدودونو او یا لیکښو پړاوونه تېر کړي او تر اسلام وروسته یې عربي لیکښه خپله کړې ده. معمول عربي لیک یا الفبې چې ټول(۲۸) بېلابېل توري لري، د دې جوګه نه ده، چې ټول پښتو غږونه راونغاړي، یانې پښتو غږونه زیات او د عربي لیکدود توري (شکلونه) کم دي، د همدې کمښت د پوره کولو او د پښتو غږونو د سمې افادې لپاره پر پښتو (یا ګانو) سربېره اته داسې نور توري پر بېلابېلو وختونو د دې ژبې له (الفبې) سره یو ځای شوي، چې تر ډېره حده یې د پښتو اوازونو د افادې چاره اسانه کړې ده. له هغه وخته چې پښتو په عربي لیکښې لیکل شوې، نو وخت پر وخت په کې بدلون راغلی دی. ویل کېږي چې په پښتو لیکدود کې لومړني بدلونونه د سلطان محمود غزنوي زمانې پورې اړه پیدا کوي، تر هغه وروسته پیرروښان د پښتو غږونو لپاره ځینې شکلونه وضع کړي، وروسته بیا خوشالخان د ((زنځیري)) لیکدود په نامه یو بل لیکدود جوړ کړی، چې د ده خپل او دده د کورنۍ ځینې اثار پرې لیکل شوي دي. د غازي امان الله خان د واکمنۍ پر مهال د (پښتو مرکې) له خوا هم د لیکدود د سمون په اړه

ځينې هڅې شوي، تر هغه وروسته په کندهار کې (ادبي انجمن) او بيا په کابل کې (پښتو ټولنې) د ليکدود د سمون په برخه کې خپلې هلې ځلې کړي او دا هڅې ان د باره ګلی تر علمي سيميناره غځېدلې دي. خو بيا هم پښتو اوسنۍ کارېدونکې الفبې د دې جوګه نه ده، چې د پښتو غږونو بشپړه استازي يا څرګندونه وکړي، له همدې امله لا هم د دې اړتيا شته، چې په پښتو الفبې کې پوره پوره سمون راشي. د الفبې يا تورو سمون د دې زمينه برابروي، چې د يوې ژبې ليکنی متن سم شي. د يوې ژبې په ليکني سمون سره ورو ورو يوه ژبه له بېلابېلو يا مختلفو ګړدودونو او لهجو څخه راوځي، يوه واحده بڼه خپلوي او د يوې ژبې ليک لوست ورسره پوره پوره اسانېږي. ژبپوهان په دې نظر دي، چې د يوې ژبې د معياري کولو او يووالي لپاره تر ټولو غوره لاره همدا ده، چې ليکدود سره يو شي. د افغانستان نوميالی ژبپوه استاد زيار وايي، چې ژبه د وګړو په خولو کې ده او خولې په لکونو څه چې په ميلونونو دي، نو موږ نه شو کولای ژبه د چا په خوله کې سمه کړو، خو ليک يو واحد سيستم دی، که ليک سم شي، نو خولې هم ليک تعقيبوي، په دې ډول د وخت په تېرېدو سره خولې او ليک سره سمون خوري. د دې اثر (پښتو ليکنی سمون) د ليکلو ضرورت هم دا و چې پورتني مجبوريتونه او ضرورتونه تر يوه حده پوره کړي او زموږ ژبه له ګړدوديزې او ليکدوديزې انارشۍ څخه وژغورل شي، دې کار سره به د ژبې د وينا سيستم سم تلفظ او د مانا په پوره انتقال کې به اسانتياوې را منځته شي.

ددې اثر په ليکلو کې هڅه شوې هغه ستونزې تر يوه حده اوارې شي، چې اوس په پښتو ليکنۍ بڼه کې تر سترګو کېږي. پـه دې اثـر کې  د ځينـو ګرامـري تېروتنـو د مخنيـوي لپـاره معمولـو ګرامـري تېروتنو او دهغو سمې بڼې ته هم اشاره شـوې، دا اثـر اساسـاً کـوم ګرامري لاربښود نه دی، خو دې سره سره بيا هم هغه خپلواکـې او ناخپلواکې کلمې چې اوس په نـاخبرۍ او ناپوهـاوي کـې د پښتـو ګرامر د اساسي قاعدو خلاف په دوديز ډول ناسمې ليکل کېـږي، د هغو سمې کارونې لارو چارو ته هم په کې ګوته نيول شوې ده. يـو شمېر اختلافي کلمې او د هغو سمې بڼې ته هم نغوته شوې ده. پـه بنسټيز ډول د دې اثر له ليکلو څخه زمـا غـټ هـدف دا و، چـې د پښتو ليکني سمون پـه بهـير کـې خپلـه ونـډه واخلـم، د ښـوونځي زده کوونکو او د پوهنتون محصلينو ته په پښتو ليکنۍ برخه کـې تـر خپله وسه اسانتياوې رامنځته کړم او هـم هغـو نـا پښتنـو پښـتو زده کوونکو او بهرنيانو ته، چې د ليک له لارې د پښتو ژبې د زده کـړې لېوال او مينوال دي، لاره سيده کړم. يادونـه کـوم چـې پـه پښتـو ليکنۍ برخه کې نه دا لومړنی اثر دی او نه هم وروسـتی؛ تـر هغـه وخته د دې لړۍ غځول په کار دي، چې پښتو ليک د پښتـو ژبـې د افادې ټولې خواوې انځور او ټولې اړتياوې خړوب کړي.

په مينه او درناوي

محمد اسمعيل يون

# لومړی څپرکی

## پښتو غږونه او توري

**الف- غږونه:** د ګړنۍ ژبې بنسټ غږونه او د لیکنۍ ژبې بنسټ توري جوړوي. طبیعي خبره ده، چې غږونه د انسان له ژوندانه سره سم رامنځته شوي دي. د غږ پوهنې یا فونولوژۍ علم له مخې ((غږ یا اواز د ژبې تر ټولو کوچنی غږیز توک یا عنصر ته ویل کېږي، چې په خپله په ځانګړې توګه کومه مانا نه لري، خو له ترکیب او یوځای کېدو څخه یې مانا لرونکې کلمې جوړېږي او هم په کلمو کې د مانا د توپیر سبب ګرځي.)) [1]

په حقیقت کې غږ د ژبې بنسټ دی؛ که غږ نه وي ګړنۍ ژبه نه شته او چې ګړنۍ ژبه نه وي نو لیکنۍ ژبه هم نه شته. لیک د ژبې مادي استرګنل کېږي، غږ په غوږونو اورېدل کېږي، خو په سترګو نه لیدل کېږي، خو کله چې د تورو یا لیک په چوکاټ کې قید شي، نو د سترګو د لیدو او فزیکي شتوالي جوګه شي. غږونه هم

[1] غږ پوهنه او ویپپوهنه، بخت میر وزیری، کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، د نا پښتو څانګو لپاره، ۱۳۸۴ ل کال، ۴ مخ.

خپل خپل ډولونه لري، د نړۍ په زیاتو ژبو کې غږونه معمولاً د دوديز وېش له مخې پر دوو ډولونو وېشي؛ خپلواک او نا خپلواک يا واول او کانسونينټ چې غږن او بې غږه اوازونه هم ورته وايي. سربېره پر دې غږونه د خولې او وتونځي (مخرج) او لفظي غږو له مخې پر ژبغاښيزو ، پزيزو، تالويزو، شونډېيزو او نورو ډولونو هم وېشل کېږي. پښتو ګرامر پوهانو او ژبپوهانو د خپل دوديز تعريف له مخې پښتو غږونه پر څلورو ډولونو وېشلي دي. دا وېش يې په خوله کې د غږ د توليد د څرنګوالي له مخې کړی دی يانې دا چې يو غږ د توليد په بهير کې د ساهوا جريان له خنډ او ځنډ سره مخامخوي که نه؟

د همدې دوديز وېش له مخې په پښتو کې د غږونو د وېش دا ډلبندي په دې ډول ده:

**۱- خپلواک، غږن يا واول غږونه:** هغو غږونو ته ويل کېږي، چې له خولې څخه د راوتو پر مهال يې دغږيزو غړو ترمنځ ټکر رامنځته نه شي، يانې دا چې: هر هغه اواز چې يوځل له کوم خنډ او بندښت پرته له خولې څخه راوځي، هغه ته خپلواک، غږن يا واول غږ ويل کېږي.

په پښتو کې دغه لاندې غږونه په خپلواکو غږونو کې شمېري:

۱- الف: ا ( ā)

۲- ګرده (هې) يا زور (ه) (a)

۳- زورکی (ه) د باړګۍ د سيمينار د پرېکړې له مخې يې بڼه داده: (ۀ) (ə)

۴- اوږده يا ښځينه (ې)

۵- څرګنده يا لنډه (ي) (i)

٦- اوږد یا په دودیزه نوموونه مجهول واو (و = o)
٧- لنډ یا څرګند واو (و = u)

خو پوهاند صدیق الله رښتین په پښتو کې د (واونو) شمېر (څلور) ګڼلی او ځینو نورو پوهانو بیا الف په دوه ډوله ګڼلـی، نـو کـه دا نظریه هم ورسره ومنل شي، د پښتو واولونو شمېر به لسو ته پورتـه شي، خو پـه دودیـزو وېشـنو کـې پښتـو واولونـه، چـې پـه تـورو، انځورونو یا ګرافیمونو افاده کېږي، همدا اوه (٧) توریز وېش ډېـر معمول دی.

البته په پورتني وېش کې هم، چـې واولونـه (٧) ګڼـل شـوي، د پښتو ژبې لپاره اوسنی کارېدونکی عربي لیکدود دهغـو د افـادې لپاره (٧) بېلابېل ګرافمیونه نه لري. دا (٧) بېلابېل غږونه په عربـي –پښتو لیکدود کې په (ا، ه، ې، و، ي) انځورونو افاده کېږي، البته که د زورکي (ə) لپاره د باړه ګلي وراندیز (ۀ) ومنل شي نـو د اوو (٧) غږونو د تمثیل لپاره به (٦) شکلونه ولرو.

خو بیا به هـم د ( u او o ) دوو خپلواکـو غږونـو د تمثیـل لپـاره یوازې یوه بڼه ( و ) لرو.

ژبپوهان دواولو په اړه دا خبره هم کوي، چې د نورو غږونو پـه تلفظ او افاده کې دا غږونه اساسي نقش لري، که چېرې دا غږونه نه وي، هغه نور غږونه اصلاً حرکت نه شي کولای. همدا غږونه د څپې یا سـېلاب زړی هـم جـوړوي او پـه هـره څپـه کـې د یـوه خپلواک غږ شتون حتمي دی او له واول پرته څپه هډو جوړېـدی نه شي. څپه بیا د ګړنۍ ژبې انکشـافي شـکل دی، کېـدی شـي، ماناواله وي او یا هم مانا ور نه کړي.

۲- نا خپلواک، ناغږن یا کانسونینټ غږونه: نا خپلواک اوازونه یا غږونه هماغه دي، چې له خولې څخه د راوتو پرمهال د هوا جریان بندوي او غږیز غږي یو بل سره نښلي، یانې دا چې لکه د واول په شان له کوم خنډ پرته له خولې څخه نه راوځي.
ناخپلواکو غږونو ته چوپ (کانسونینټ) غږونه هم وایي: په پښتو کې نا خپلواک غږونه د دې لاندې شکلونو په واسطه انځورېږي:
۱- ب ، ۲- پ، ۳- ت، ۴- ټ ، ۵- ج، ٦- چ، ۷- څ، ۸- ځ، ۹- خ، ۱۰- د، ۱۱- ډ، ۱۲- ر، ۱۳- ړ، ۱۴- ز، ۱۵- ژ، ١٦- ږ، ۱۷- س، ۱۸- ش، ۱۹- ښ، ۲۰- غ، ۲۱- ک، ۲۲- ګ ۲۳- ل، ۲۴- م، ۲۵- ن، ۲٦- ڼ، ۲۷- هـ

پوهاند صدیق الله رښتین د پښتو ناخپلواکو غږونو او یا هم تورو شمېر (۲٦) ګڼلی[1] سربېره پر نوموړو غږونو او یا هم تورو په پښتو کې لس داسې عربي غږونه یا توري هم کارول کېږي، چې اصلي ریښه او جوړښت یې عربي دی، یانې په هره کلمه کې چې دا غږونه یا توري و کارېږي، هغه به عربي وي، پښتو به نه وي. د یادونې وړ ده، چې پښتو ژبه کې د دې غږونو او تورو سم تلفظ څه ناڅه مشکل دی، نو ځکه خو یې د تلفظ پر وخت زیاتره انډولونه کارول کېږي، یانې په خپله ژبه کې هغه ته ورته اوازونه ، د بېلګې په توګه: (ص) د (س) په تلفظ، (ث) د (څ) یا (س) په تلفظ (ف) د (پ)، (ذ) د (ز) او (ځ) په تلفظ او همداسې نور درواخله. هغه اوازونه یا توري، چې له عربي کلمو سره یو ځای

(۱) پښتو ګرامر (ژب ښودنه)، صدیق الله رښتین، خاور خپرندویه ټولنه، ۳ مخ.

پښتو ته راغلي او اوس يې په پښتو ګړنۍ او ليکنۍ ژبه کې کارونه يو ضرورت او دود دی، دادي:
( ث، ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ف، ق، ع)

د يادونې وړه ده، چې دا پورتني اوازونه او توري هېڅکله هم په نړه پښتو کلمو کې نه راځي. په ټوليز ډول د عربي غږونو په ګډون په پښتو کې اوس ( ۳۷ ) ناخپلواک غږونه او د هغو ګرافيمونه يا توري کارول کېږي.

خو پوهاند دوکتور مجاور احمد زيار د ټولو پښتو غږونو يا تورو شمېر (۳۷) ګڼلی او که چېرې د عربي دا لس نړه توري يا غږونه ورسره يوځای شي، نو شمېر به يې (۴۷) تورو ته ورسېږي. که غبرګغږونه او سيمې واولونه پرې سرباری شي، نو خبره يو کم شپېتو غږونو ته رسېږي او که د ځينو لهجو واولونه هم په پام کې ونيسو، نو خبره تر شپېتو هم پورته کېږي.

**۳- نيمه خپلواک يا سيمې واول غږونه:** د ژبپوهنې د دوديزو تعريفونو او وېش په لړ کې د نيمه خپلواکو غږونو يا سيمې واول موضوع هم د يادونې وړ ده. سره له دې چې يو شمېر اوسني ژبپوهان، سيمې واول ګرد سره مني نه او وايي چې اوازونه يا واول دي يا کانسونينټ او نيمه واول کومه مانا نه ورکوي، ځکه واول يو څپه جوړوي او دلته هم يوه څپه يا سېلاب وي ياني په هر څه کې چې اوس د سيمې واول په نامه توري وي، هلته واول هم ورسره وي او له واول پرته سيمي واول د کانسونينټ په شان حرکت نه شي کولای، نو ځکه بايد په

کانسونینټ کې وشمېرل شي. خو د نویو ژبپوهانو له دلایلو سره سره بیا هم د سیمې واول اصطلاح تراوسه له دوده غورځېدلې نه ده. دودیز ژبپوهان په پښتو کې دغه لاندې اوازونه سیمې واول ګڼي.

۱- y= ی ، لکه یلبند، yelband ، yawāze

۲- w= و لکه ګل gwəl ، درواغ dərwagh

د یادونې وړ ده، چې په پښتو لیکدود کې ددې دوو غږونو یا سیمې واولونو د افادې لپاره ځانګړې ګرافیم نه شته؛ په دې لیکدود کې د دې اوازونو د تمثیل لپاره د (و) او (ی) له بنې کار اخیستل کېږي. خو په پښتو فونیمیکه الفبا کې یې ورته (y او w ) بڼه غوره کړې ده.

۴- غبرګغږونه یا دیفتونګونه: د غږونو په دودیز وېش کې یوه کټګوري هم د غبرګغږونو ده، غبرګغږونه یا دیفتونګونه هغو اوازونو ته ویل کېږي، چې له یوه واول او یوه سیمې واول یا نیمه واول څخه رغېدلي وي. دیفتونګونه هم لکه د واول په شان له کوم ځنډ پرته په یوځایي ډول له خولې څخه راوځي، خو په دې توپیر چې تر واولونو درانه ویل او ښکاره کېږي، چې د واول ترڅنګ ورسره یو بل غږ هم ملګرتیا کوي، ځینې اوسني ژبپوهان د سیمې واول په شان د دیفتونګ له تعریف او جلا کټګورۍ سره هم موافق نه دي او ټول اوازونه یوازې پر دوو کټګوریو یا ډلبندیو (واول) او (کانسوننټ) وېشي.

دغبرګغږ له دودیز تعریف سره سم پښتو غبرګغږونه دا دي:

۱- ای (āy) لکه پای pāy، چای čāy
۲- ی (ay) لکه زمری zmaray ، زلمی zalmay
۳- ی ( əy) لکه ځولی ĵoləy، ډوډی ( ḍoḍəy)
۴- وی (uy) لکه خوی xuy ، بوی buy
۵- وی (oy) زوی zoy ، لوی loy
٦- او (**āw**) کړاو karāw ، پړاو parāw
۷- او (aw) لو (law) ، پلو (palaw)
۸- و ( əw) لکه کټو ( katəw) بګو (bagəw)
۹- یو ( iw) تریو triw یو (iw)
۱۰- یو (ew) دېو dew

په پښتو کې غبرګغږونه همدا دي، چې پورته مو ورته اشاره وکړه، د وروستيو درېو (ew,iw,əw) کارونه يې ډېره کمه ده او يوازې د ګوتو په شمار استعمال ځايونه لري. دغه راز په پښتو ليکدود کې د (۴، ۵) ګڼې (oy ،uy) او (٦، ۷) ګڼې (aw,āw) توپيرونه او د (۸) ګڼې (əw ) سمه ليکنه مشکله ده، د (۹-۱۰) ګڼې ( ew ، iw) سمه انځورونه که څه هم مشکله نه ده، خو په اوسني دوديز استعمال کې يې څوک ډېر خيال نه ساتي. اوس نو که موږ ديفتونګونه هم د جلا اوازونو په توګه محاسبه کړو او د عربي نره غږونو يا تورو په ګډون يې له پښتو غږونو سره يو ځای کړو او هم په ځينو ګړدودونو کې ځينې نور کارېدونکي واولونه هم پرې زيات کړو، نو په پښتو کې به د اوسنيو کارېدونکو غږونو شمېر تر (يو کم شپېتو) بېلابېلو غږونو واوړي. د دې شمېر غږونو په شتوالي سره به پښتو ژبه د ژبو په هندو اروپايي کورنۍ، په تېره بيا په

ختیزو اریایي ژبو کې هغه ژبه وي، چې د اوازونو لمن یې تر ټولو زیاته پراخه ده.

**ب- توری، حرف، انځور، شکل یا ګرافیم:** د یوه غږ لیکل شوي شکل یا بڼې ته وایي، یا په بله وینا د لید وړ هغه رسم یا انځور دی، چې د یوه اواز ښکارندویي کوي. زموږ په ګړنۍ ژبه یا اصطلاحاتو کې اکثره وخت خلک د اواز او توري (حرف) توپیر نه کوي، دواړه په یوه مانا کاروي، سره له دې چې توري او اوازونه په مترادفه مانا کاریږي، خو په حقیقت کې توري د اواز تابع دي او د همغه اواز ښکارندویي کوي، چې دا توري ورته د نښې (سمبول) په توګه غوره شوي دي. په نړۍ کې د ګڼو ژبو غږونه په ډېر کم تغییر سره اوښتي را اوښتي او یا یې هم خپل ځینې ژبنې یا ګرامري خصلتونو لږ و ډېر تغییر کړی دی، خو داسې ډېرې ژبې شته چې لیکدود یا تورو یې سل په سلو کې بدلون موندلی ، ان یوې ژبې څو ډوله توري یا په ټولیز ډول ابېڅې (الفبې) درلودلي دي. پښتو ژبه او تر څنګ یې ځینې نورې اریایي ژبې هم د څو لیکدودونو ((میخي، ارامي،خروشتي، یوناني))[1] تر بهیرونو تېرې شوي او اوس دا دی په عربي الفبې کې دنړدې نیمایي توپیر په زیاتوالي سره همدا الفبې کاروي، خو اوسنۍ کارېدونکې ابېڅې په عام ډول د جوړښت له مخې د همدې عربي لیکدود د قاعدې مطابق حرکت کوي. عربي لیکدود او په هغه کې راغلي زیاتون

(۱) - د کوشاني دورې د ژبو څېړنه، محمد نبي صلاحي ، د علومو اکاډمي، ۱۳۸٦ ل کال، کابل، ۷۵ مخ.

بیا هم د پښتو غږونو بشپړه ښکارندویي نه شي کولای، له همدې امله نه یوازې پښتو، بلکې د نړۍ اکثره ژبې چې لیکدود یې د ژبو د ټولو غږونو او اړتیاوو انځورنه، نه شي کولای، د ځینو علمي ستونزو د حل او په ژبه کې د ځینو خاصو کلمو او غږونو د دقیق قید لپاره له یوې بلې ابېڅې څخه هم کار اخلي. دې ابېڅې ته د ژبپوهنې په نړیواله نوмونه کې ( فونیمیکه) الفبې وایي، چې په پښتو کې یې موږ (غږیزه) ابېڅې بولو.

غږیزه الفبې د یوې ژبې په سلو کې (۹۹%) لفظي ستونزې اوارولای شي، خو هغه کلمې، چې د شکل او تلفظ له مخې سره ورته او ماناوې یې بېلابېلې وي، دا ستونزه بیا هم نه شي حلولای، خو د کلمې د تلفظ په دقیق ثبت کې مرسته کوي. البته د دې ډول کلمو ستونزه یوه مانیزه ستونزه ده، نه لفظي او په لیکدود پورې اړه نه لري. دغه راز په پښتو کې ( دخج یا فشار) ستونزه هم د یادونې وړ ده. کله چې فشار د یوې کلمې په لر او بر کې راشي، د کلمې مانا اړوي، دا ستونزه هم په غږیزې الفبې نه شي حلېدلای، البته دخج د یوې ځانګړې نښې (ً ) په واسطه کېدی شي، چې یوه کلمه په همغې مقصودې مانا تلفظ شي. لکه څنګه چې په عربي - پښتو لیکدود یا ابېڅې کې څه نا څه اختلافات او کمی شته، دغسې پښتو غږیزې الفبې کې هم د څو محدودو تورو د بڼې په اړه د نظر یووالی نه شته، دلته به لومړی د پښتو ابېڅې دا دواړه بڼې ( عربي پښتو لیکدود او پښتو فونیمیکه بڼه) راوړو او بیا به پر هغو څو محدودو تورو هم رڼا واچوو، چې لا تراوسه هم په یوه واحده بڼه نه کارېږي:

## ج- پښتو توري او د هغو نومونه:

په پښتو او بله هره ژبه کې توري یا حرفونه نه يوازې د همغې ژبې د غږونو استازي او ښکارندویي کوي، بلکې توري په خپله نومونه هم لري، چې له همغه اواز څخه رېښه او الهام اخلي، د پښتو تورو په ليکنۍ برخه کې تر ډېره حده د نظريو والي را منځته شوی، يوازې يو څو توري داسې دي، چې لا اوس هم تر يوې زياتې بڼې لري او يا هم ټول يې په يو ډول نه کاروي. دا چې هر توری په خپله په کوم نامه ياد شي، په دې کې هم د نظر توپير شته، خپله له پښتو (الفبې) څخه نيولې بيا د هغې تر بېلابېلو تورو پورې ، نومونه په واحده بڼه او شکل نه کارېږي.

د پښتو ليک د مجموعي تورو تر څنګ ((الفبې)) ته څوک (الفبا) او څوک هم (ابېڅې) وايي، دغسې يې توري هم در واخله ، دلته به لومړی د پوهنې وزارت پښتو الفبې سيستم ته نغوته وکړو، بيا به يوې هغې پښتو الفبې ته نغوته وکړو، چې په دوديز ډول پښتو کې کارېږي او هر توری يې هم له عربي قاعدې سره سم په همغو ورته نومونو يادېږي او بيا به د هېواد د نوميالي ژبپوه استاد پوهاند زيار له خوا هغې پښتو ابېڅې ته هم نغوته وکړو، چې په نومونو کې يې څه نا څه سمون او زياتون راوړی دی.

لومړی به د پوهنې وزارت له خوا کارېدونکې پښتو الفبې راوړو، چې په پښتو تعليمي کتابونو کې کارېږي.

ا آ ب پ ت ټ ث ج

چ ح خ څ ځ د ډ ذ

ر ړ ز ژ ږ س ش ښ
ص ض ط ظ ع غ ف ق
ک ګ ل م ن ڼ و هـ
ی ې ۍ ئ ي

د دې تورو لپاره له عربي قاعدې سره سم نومونه ايښودل شوي دي.

بله هغه پښتو دوديزه الفبې ده، چې په ځينو علمي مرکزونو کې کارېږي. د دې الفبې چارټ د ايشيا سافټ کمپنۍ استازي ښاغلي نور رحمن لېوال، چې د کمپيوټر د پروګرامونو متخصص دی، ګڼشمېر پښتو پروګرامونه يې جوړ کړي او ځينې کمپيوټري نومونه يې پښتو کړي، د ځينو نورو افغان ليکوالو په لارښوونه، مرسته او همکارۍ جوړ کړی دی.

## د- پښتو الفبې

| | | | |
|---|---|---|---|
| ا<br>الف | ب<br>بې | پ<br>پې | ت<br>تې |
| ټ<br>ټې | ث<br>ثې | ج<br>جيم | ح<br>حې |
| چ<br>چې | څ<br>څې | ح<br>حې | خ<br>خې |
| د<br>دال | ډ<br>ډال | ذ<br>ذال | ر<br>رې |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ړ<br>ړي | ز<br>زي | ژ<br>ژي | ږ<br>ږي |
| س<br>سين | ش<br>شين | ښ<br>ښين | ص<br>صاد |
| ض<br>ضاد | ط<br>طي | ظ<br>ظي | ع<br>عين |
| غ<br>غين | ف<br>في | ق<br>قاف | ک<br>کاف |
| ګ<br>ګاف | ل<br>لام | م<br>ميم | ن<br>نون |
| ڼ<br>نوڼ | و<br>(واو) | ه<br>هي | ي<br>څرګنده يې |
| ې<br>اوږده يې | ۍ<br>ښځينه يې | ئ<br>کړواله يې | ی ے<br>نرمه يې |

پورتنۍ الفبې تقريباً متفقه ده او په ټوله پښتو کې له ځينو ځايونو پرته همدا الفبې کارېږي، اکثريت ليکوال همدا ښه کاروي. يوازې د(ګ) او (ے) په اړه د نظر اختلاف شته، ځينې پښتو ژبپوهان په دې نظر دي، چې د (ګ) پر ځای بايد (گ) وکارول شي، ځکه يو توري ته غړوندی ورکول هغه وخت په کارېږي، چې د تلفظ پر وخت ژبه هم ورسره په خوله کې را تاوه شي، لکه ځينې نور پښتو اوازونه يا توري (ډ، ړ، ڼ، ټ ) خو په (ګ) کې دا حالت نه شته، نو ځکه يې غړوندي ته هم اړتيا نه شته. ( ے) هم

ډېره نه کارېږي ، يوازې په باره ګلی سيمينار کې يې د يوه بـديل په توګه د کارونې وړانديز شوی و، خـو د تـورو پـه نومونـو کـې پوهاند ډاکتر مجاور احمد زيار د دې تر څنګ چې اکثـره همـدا دوديزه نومونه تائيدوي، د نور سمون اړتيا هم نه هېروي. هغه دا توري د يوه منظم سيستم لوښي ته اچوي، هغه الف ته (الف) (ه) ته (هې)، زور او فتحه وايـي، (ر) تـه (رې)، (ډ) تـه (ډې)، (ې) تـه (اوږده ې)، ( ه= ə ) (ته زورکی)، (ګ) ته (ګې) ، (غ) ته (غې)، (ي) ته (لنډه يې)، (ځ ) ته ( ځې)، (ج ) ته (جې)، (ک) تـه (کـې ) ، (ل) ته (لې) ، (م) ته (مې) ، (ن) تـه (نـې )، (ڼ ) تـه (ڼـې ) ، (س) تـه ( سې) ، (ش ) ته ( شې ) ، (ښ) ته ( ښې)، (ی) ته زور والـه (ی ـ ) ، (ۍ) ته ( زورکـي والـه ۍ) ، وايـي دغـه راز (o=و) تـه اوږد واو، (u=و) ته لنډ واو، (w=و) ته ( ښواکـه واو) او (y=ی) تـه ( ښواکـه ی) وايي.

سره له دې چې په ليکنۍ برخه کـې لـه (ګ=ګ) پرتـه پـه نـوره برخه کې له پورتنۍ (الفبې ) څخه د پوهاند زيـار (ابېڅـې) کـوم توپير نه لري، خو د تورو نومونې په برخه کـې څرګنـد تـوپير پـه کې ليدل کېږي. که د پوهاند زيار پورتنۍ طرحې ته سرې دقيـق شي، نو د ژبپوهنې د آرونو له مخې د تورو دا نومونه دقيقـه او د يوه منظم سيستم تابع ده. کـه همـدا نومونـه وکـارول شـي، زده کوونکو ته به د زده کړې پر مهال د يـو واحـد سيسـتم لـه برکتـه اسانتياوې را منځته شي.

## هـ- پښتو غږیزه ( فونیمیکه) ابېڅې:

لکه څنګه چې د مخه مو یادونه وکړه؛ هره ژبه د خپلو ځینو غږونو لپاره، چې په خپله دودیزه ابېڅې کې ورته توري نه لري او همد راز د ځینو علمي مسایلو د ښې تشرېح او حل لپاره له فونیمیکي الفبې څخه هم کار اخلي، فونیمیکه ابېڅې په واقعیت کې هغه علمي الفبې ده، چې د ژبې ډېرې لیکنۍ اړتیاوې لرې کولای شي. پښتو ژبپوهانو هم له نړیوالو معیارونو سره سم پښتو ژبې لپاره فونیمیکه ابېڅې جوړه کړې ده. دا ابېڅې که څه هم تر ډېره حده یوه بڼه لري، خو بیا هم د ځینو تورو په لیکنۍ بڼه کې یې توپیر شته، دلته به موږ د پښتو فونیمکې الفبې لیکبڼې درته وړاندې کړو، چې د څو بېلابېلو پوهانو له خوا وړاندې شوې دي:

لـومړی بـه هغـه فونیمکـه الفبـې وړانـدې کـړو، چـې ښـاغلي نوراحمد شاکر په خپل کتاب (ژبنۍ څېړنې) کې راوړې ده .

## الف- کانسونینټونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ب | b | پ | p |
| ت | t | د | d |
| ټ | ṭ | ډ | ḍ |
| ج | j | ر | r |
| چ | č | ړ | ṛ |
| څ | ts | ز | z |
| ځ | dz | ږ | ẓ |
| خ | x | ژ | ž |
| س | s | ل | l |
| ش | š | م | m |
| ښ | ṣ | ن | n |
| غ | ḡ | ڼ | ṇ |
| ک | k | هـ | h |
| ګ | g | | |

د پوهندوی نوراحمد شاکر په اثر کې د خاصو عربي تورو لپـاره دا لاندې لیکبڼې غوره شوې دي:

ث s̱ ، ح h̲، ذ z̲ ، ص ṣ ، ض ẓ ، ط t̲ ، ظ z̄ ، ع ? ، ف f ، او ق q.

د سیمې واول لپاره دا لاندې بڼې غوره شوې دي:

و (w): لکه په (کنډو = kandə́w) او (ولور= walwár) کې.

ی (y) لکه په (یخی= yaxáy) او (اګی= agəy) کې.
پوهندوی شاکر په خپل کتاب کې پښتو واولونو او د هغوی ځرنګوالي ته په دې ډول ګوته نیولې ده:
ب- واولونه: Vowels
و (o) : لکه په (نور= nor) او (پور= por) کې.
ُ (u) : لکه په (پل = pul) او (سور= sur) کې.
و (ū) : لکه په (نـورو= nūru) او (تـورو= tūru) کې لـومړي واوونه.
ي (i) : لکه په (ځیر= dzir) او (پیر= pir) کې.
ي (í) : لکه په (کیږي= kiẓi) کې لومړی (ي)
ې (e) : لکه په (ډېر= der) او (شمېر= šmer) کې.
زورکی (ə) : لکه په (زړه= zṛa) او (لېوه= lewə) کې.
ا، یا زور (a) : لکه په (اړخ= aṛx) او (سر= sar) کې.
آ (ā) : لکه په (کار= kār) او (آس = ās) کې.[1]

ځېړنوال دوکتور عبدالحکیم هلالي په خپل اثر ( د پښتو ژبې د فونیمیکې الفبې لارښود) کې دا الفبې په مفصل ډول تشریح کړې ده. دا اثر پر ۱۳۵۵ل کال د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی. ځېړنوال دوکتور هلالي چې کومه فونیمیکه الفبې په خپل اثر کې راوړې هغه د پښتو ټولنې د هغه بحث او توافق نتیجه ده، چې دې لاندې پوهانو په کې ګډون کړی و:

[1] پوهندوی نوراحمدشاکر، ژبنی څېړنې، ۱۳۵۰ل کال، ۱۴-۱۵ مخونه.

پوهاند عبدالحی حبیبي، پوهاند عبدالشکور رشاد، پوهاند محمدرحیم الهام، عبدالروف بېنوا، پوهاند دوکتور سیدبهاوالدین مجروح، څېړنوال محمدصدیق روهي، څېړندوی عبدالله خدمتګار، دوکتور مجاوراحمدزیار، څېړنوال دوکتور سیدالشاه پولاد، څېړنوال دوکتور دولت محمد لودین، عبدالجلیل وجدي، څېړنوال دوکتور عبدالحکیم هلالي.

په دې اثر کې پښتو غږیزه الفبې په دې ډول راغلې ده:

د پښتو ژبې منلې شوې فونیمکه الفبې:

| | مثالونه | دفونیمیکې الفبې توري | معمولي توري |
|---|---|---|---|
| atal,sar,špa | اتل، سر، شپه | a | ا |
| ās,wyāṛ,sabā | آس، ویاړ، سبا | ā | آ |
| bār | بار | b | ب |
| paṣto | پښتو | p | پ |
| tor | تور | t | ت |
| ṭol | ټول | ṭ | ټ |
| joṛ | جوړ | J | ج |
| čākū | چاکو | č | چ |
| jāy | ځای | j | ځ |
| cok | څوک | c | څ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| xor | خور | x | خ |
| dod | دود | d | د |
| deṛ | ډېر | ḍ | ډ |
| rap | رپ | r | ر |
| ṛūnd | ړوند | ṛ | ړ |
| zoṛ | زوړ | z | ز |
| žwənd | ژوند | ž | ژ |
| ẓağ | ږغ | ẓ | ږ |
| samūn | سمون | s | س |
| šəl | شل | š | ش |
| ṣāğəlay | ښاغلی | ṣ | ښ |
| ğamay | غمی | ğ | غ |
| kār | کار | k | ک |
| gaḍ | ګډ | g | ګ |
| lās | لاس | l | ل |
| moṛ | موړ | m | م |
| nən | نن | n | ن |
| maṇa | مڼه | ṇ | ڼ |
| wādə, žəṛawəl | واده، ژړول | w | و |
| har,sahār | هر، سهار | h | هـ |
| yor, melmastyā | یور، مېلمستیا | y | ي |

| | | | |
|---|---|---|---|
| saṛay | سړی | ay | ی |
| hosəy | هوسۍ | əy | ۍ |
| wir | ویر | i | ي |
| ter, maste | تېر، مستې | e | ې |
| kor | کور | o | و(مجهول) |
| lūr | لور | ū | و (معروف) |
| sur | سر (په موسيقۍ کې) | u | پېښ |
| ibra | ابره (حاصل) | i | زېر |
| nikə, lwastəl | نیکه، لوستل | ə | زورکی |
| دخج د ځای د ښوولو لپاره دا لاندې علامه مثل شوې ده: | | | |
| koṭá | کوټه | | خج |

**احتیـاطي**: ث (θ)، ح (h̲)، ذ (δ)، ص (s̲)، ض (z̲)، ط (t̲)، ظ (z̄)، ع (ʕ)، ف (f)، ق (q) ء (') معدولـه واو (w) جرمنـي (w)، انگلیسـي (v) او روسي (B) په (v).[1]

پر پوهندوی نوراحمـد شـاکر او څېړنـوال دوکتـور عبـدالحکیم هلالي سربېره پوهنوال محمد صابر خوښکي په خپل اثر (پښتو غږ پوهنه او وييپوهنه) کې پښتو فونيميکه الفبې پـه دې ډول تشـرېح کړې ده:

[1] څېړنوال دوکتور عبدالحکیم هلالي، د فونيميکې الفبې لاربښود، پښتو ټولنه، ۱۳۵۵ل کال، ۷-۱۱ مخونه.

**الف- واولونه:** د پښتو واولونو لپاره يې دغه لاندې توري يا انځورونه کښلي دي:

**۱- د څرګند واو (و) لپاره يې** (u)

**۲- د اوږد واو (و) لپاره يې** (o)

**۳- د څرګندې يا (ي) لپاره يې** (i)

**۴- د ښځينه يا (ې) لپاره يې** (e)

**۵- د زور (ه) لپاره يې** (a)

**٦- د الف (ا) لپاره يې** (ā)

**۷- او د زورکي (ه) لپاره يې** (ə ) **شکلونه غوره کړي دي.**

**ب- کانسونينټونه:** پوهنوال محمد صابر خوېشکي کانسونينټونه په دې ډول ښودلي دي:

| گڼه | پښتو مروجه الفبا | فونیمیکه الفبا | مثالونه |
|---|---|---|---|
| ۱ | ب | b | بڼ، بڼوال، باران |
| ۲ | پ | p | پند، پوپل، توپ |
| ۳ | ت | t | تور، تالو، توت |
| ۴ | ټ | ṭ | ټول، پلټل، مټ |
| ۵ | ج | j | جوړ، ناجوړ، تاج |
| ۶ | ځ | ǰ | ځمکه، نانځکه، ورځ |
| ۷ | چ | č | چار، مچ، پچه |
| ۸ | څ | c | څادر، څڅوبی، پایڅه |
| ۹ | خ | x | خواږه، یخ، اخ |
| ۱۰ | د | d | دود، درد، پند |
| ۱۱ | ډ | ḍ | ډګر، ډاډ، هډ |
| ۱۲ | ر | r | رامبېل، ټبر، اوبه |
| ۱۳ | ړ | ṛ | ړنګ، تړل، ویجاړ |
| ۱۴ | ز | z | زړه، تازه، راز |
| ۱۵ | ژ | ž | ژوند، لژند، روژه |
| ۱۶ | ږ | ẓ | ږمنځ، ږلۍ، کوږ |
| ۱۷ | س | s | سل، لس، اس |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۸ | ش | š | شل،شپه |
| ۱۹ | ښ | ṣ̌ | ښه، واښه، چنگاښ |
| ۲۰ | غ | ğ | غر، ټغر، باغ |
| ۲۱ | ک | k | کور، کرکیله، تاک |
| ۲۲ | گ | g | گیله، بگۍ، پړانگ |
| ۲۳ | ل | l | لارې، لار، څنگل |
| ۲۴ | م | m | موړ، بامل، بام |
| ۲۵ | ن | n | نن، پرون، اسان |
| ۲۶ | ڼ | ṇ | باڼه، کوڼ، پڼه |
| ۲۷ | هـ | h | هلک، بهاند، مهال |

ج- عربي توري:

ث θ لکه ثابت، وارث، وراثت، باعث

ذ δ لکه ذلت، مذکور، ماخذ

ح h̲ لکه حوض، حاضر، حضور

ص s̲ لکه صبر، بصر، صبور

ض z̲ لکه ضرر، مضروب، غامض

ط t̲ لکه طالب، باطل، ناطق

ظ z̄ لکه ظالم، مظلوم، ناظم

ع ʕ لکه عادت، طاعت، معلم

ف f **لکه فرمان، کافر، نافع**

ق q **لکه قاموس، ناقوس، توافق**

**د- سیمې واولونه:**

**و** (w) **لکه ور** war **ولور** walwar

**ی** (y) **لکه یور** yor، **یو** yaw

**هـ- دیفتنګونه:**

ew،**لکه له لېو** lew **کې**

aw،**لکه** law **لو او کندہو** kandạw **کې**

āw،**لکه په پړاو** parāw **او جړاو** jarāw **کې**

əw **لکه په کټو** kaṭəw **کې**

**د** (**ی** = ay) **غبرګغږونه په لاندې ډول دي:**

**د** ay **ایوان** aywān، **میره** mayrə، **سړی** saṛay

āy **لکه آینه** āyana، **ځایګنی** ǰāygenay، **ځای** ǰāy

əy **لکه نرۍ** narəy، **ډوډۍ** ḍoḍəy، **کرکۍ** karkəy

uy **لکه خوی** xuy، **بوی** buy، **دوی** duy

oy **لکه زوی** zoy، **سوی** soy

**پوهاند دوکتور مجاوراحمد زیار پښتو فونیمیکه الفبې او د تـورو نومونه په لاندې ډول راوړي دي:**

## فونیمیک الفبې (غږیزه ابېڅې)

| فونیمیک | عادي | نوم | فونیمیک | عادي | نوم |
|---|---|---|---|---|---|
| a | / فتحه | زور، فتحه | ṇ | ڼ | ڼې |
| ā | الف | الف | o | و | اوږد(واو) |
| b | ب | بې | p | پ | پې |
| c | څ | څې | r | ر | ر ې |
| č | چ | چې | ṛ | ړ | ړې |
| d | د | دې | s | س | سې |
| ḍ | ډ | ډې | š | ش | شې |
| e | ې | اوږده يې | ṣ | ښ | ښې |
| ə | ه | زورکی | t | ت | تې |
| g | ګ | ګې | ṭ | ټ | ټې |
| ɣ (ğ) | غ | غې | u | و | لنډ (واو) |
| h | هـ | هې | w | و | بېواکه(واو) |
| i | ي | لنډه ي | x | خ | خې |
| j | ځ | ځې | y | ی | بېواکه (ی) |
| ǰ | ج | جې | z | ز | زې |
| k | ک | کې | ẓ | ږ | ږې |
| l | ل | لې | ž | ژ | ژې |
| m | م | مې | ay | ی | زور واله (ی) |
| n | ن | نې | əy | ئ | زورکي واله ئ[1] |

---

(1)- پښتو سینډګی- نویزونه، پوهاند ډاکټر مجارو احمد زیار، د ساپي څېړنو پراختیا مرکز، پېښور، ۱۳۷۸ ل کال (۱-۲) مخونه.

پوهاند زیار د پښتو فونیمیکې الفبې او ورسره د هغو توري، چې اصلاً عربي دي او په پښتو کې هم کارېږي، له فونیمیکې بڼې او مثالونو سره په خپل اثر (لیکلار ښود) کې په دې ډول راوړې دي:

| دودیز | غږیز (فونیمیک) | نوم | بېلګه | غږیزلیک |
|---|---|---|---|---|
| ا، ه | a | زور | اړه، اړ | aṛa,aṛ |
| ه،ـه | ə | زورکی | زړه | zṛə |
| آ | ā | اوږد | آر | ār,ās |
| ب | b | بې | بر | bar |
| پ | p | پې | پوړ | poṛ |
| ت | t | تې | تل | tal |
| ټ | ṭ | ټې | ټل | ṭal |
| ج | j | جې(جیم) | جل | ĵal |
| چ | č | چې | چم | čam |
| ځ | j | ځې | ځل،ورځ | jal,wraj |
| څ | c | څې | څرخ،خرڅ | carx,xarc |
| خ | x | خې | خر،خور | xar,xor |
| د | d | دې(دال) | دادا | dādā |
| ډ | ḍ | ډې(ډال) | ډول | ḍol |
| ر | r | رې | رګ،تور | rag,tor |
| ړ | ṛ | ړې | ړوند | ṛund |
| ز | z | زې | زر | zar |
| ژ | ž | ژې | ژر | žar |
| ږ | ž | ږې | ږیره | žira |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| س | s | سې(سین) | سم | sam |
| ش | š | شې(شین) | شپه | špa |
| ښ | ṣ | ښې | ښار | ṣār |
| غ | δ | غې(غین) | غر | δar |
| ک | k | کې(کاف) | کر | kar |
| ګ | g | ګې(ګاف) | ګڼ | gaṇ |
| ل | l | لې(لام) | لر | lar |
| م | m | مې(میم) | مور | mor |
| ن | n | نې(نون) | نر | nar |
| ڼ | ṇ | ڼې | روڼ | ruṇ |
| و | o (o) | او [اوږد (و)] | کور | kor |
| و | u | او[لنډ(و)] | زوم | zum |
| و | w | وې(بېواک) | ور | war |
| ه،هـ | h | هې | هم | ham |
| ې | e | اوږده یې | هیر | her |
| ي | i | لنډه یې | ویر | wir |
| ی | ay | زورواله یې | وری | wray |
| ۍ،ئ | əy | زروکـــــي واله یې | وږۍ، خورئ | wṛəy,xwrəy |
| **عربي** | **غږیز** | **نوم** | **بېلګه** | |
| ث | ɵ | ثې،ثاء | حدیث | |
| ح | ḥ | حا | حلیم | |
| ذ | δ | ذال | ذاکر | |
| ص | s̱ | صاد | صابر | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ض | z̲ | ضاد | ضمیر |
| ط | ṯ | طا،طې | طاهر |
| ظ | ẕ | ظا،ظې | ظاهر |
| ع | ʕ | عین | عالم |
| ف | f | فاء،فې | فاروق |
| ق | q | قاف | قرآن[1] |

[1] لیکلاربنود، پوهاند مجاوراحمدزیار، دانش خپرندویه ټولنه،۱۳۸٦ل، ۱۵-۱۸مخونه.

# دځلور پښتو پوهانو له نظره پښتو فونیمیکه الفبې

| گڼه | توری | پوهندوی شاکر | څېړنوال هلالي | پوهنوال خویشکی | پوهاند زیار | توپیر |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | زور | a | a | a | a | متفق |
| ۲ | الف | ā | ā | ā | ā | // |
| ۳ | ب | b | B | b | b | // |
| ۴ | پ | p | P | p | p | // |
| ۵ | ت | t | T | t | t | // |
| ٦ | ټ | ṭ | ṭ | ṭ | ṭ | // |
| ۷ | ج | j | J | j | ǰ | توپیر |
| ۸ | ځ | dz | ǰ | ǰ | j | // |
| ۹ | چ | č | Č | č | č | متفق |
| ۱۰ | څ | ts | c | c | c | توپیر |
| ۱۱ | خ | x | X | x | x | متفق |
| ۱۲ | د | d | D | d | d | // |
| ۱۳ | ډ | ḍ | ḍ | ḍ | ḍ | // |
| ۱۴ | ر | r | R | r | r | // |
| ۱۵ | ړ | ṛ | ṛ | ṛ | ṛ | // |
| ۱٦ | ز | z | Z | z | z | // |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱۷ | ژ | ž | Ž | ž | ž | // |
| ۱۸ | ږ | ẓ | ẓ | ẓ | ẓ | // |
| ۱۹ | س | s | S | s | s | // |
| ۲۰ | ش | š | Š | š | š | // |
| ۲۱ | ښ | ṣ | ṣ | ṣ | ṣ | // |
| ۲۲ | غ | g̱ | Ğ | ğ | ɣ(ğ) | توپیر |
| ۲۳ | ک | k | K | k | k | متفق |
| ۲۴ | ګ | g | G | g | g | // |
| ۲۵ | ل | l | l | l | l | // |
| ۲۶ | م | m | m | m | m | // |
| ۲۷ | ن | n | n | n | n | // |
| ۲۸ | ڼ | ṇ | ṇ | ṇ | ṇ | // |
| ۲۹ | هـ | h | h | h | h | // |

**د دیفتونګونـو پـه برخـه کـې، لکـه: ۍ** (ey)، **ی** (ay)، (āy)، (oy)، (uy)، (ew)، (əw)، (iw) **لیکنې توپیر نه شته.**

په پښتو کې د خاصو عربي تورو فونیمیکه لیکښه:

| گڼه | توری | پوهندوی شاکر | څېړنوال هلالي | پوهنوال خویشکی | پوهاند زیار | توپیر |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | ث | s̲ | θ | θ | θ | توپیر |
| ۲ | ح | h̲ | h̲ | h̲ | ḥ | // |
| ۳ | ذ | z̲ | δ | δ | δ | // |
| ۴ | ص | s̤ | s̲ | s̲ | s̲ | // |
| ۵ | ض | z̤ | z̲ | z̲ | z̲ | // |
| ۶ | ط | t̲ | t̲ | t̲ | t̲ | متفق |
| ۷ | ظ | z̄ | z̄ | z̄ | z̤ | توپیر |
| ۸ | ع | ? | ؟ | ؟ | ς | // |
| ۹ | ف | f | f | f | f | متفق |
| ۱۰ | ق | q | q | q | q | متفق |

# دویم څپرکی

## په پښتو کې د (یاګانو) سمه کارونه او اړتیا

په پښتو ژبه کې (یاګانې) د بڼې یا شکل له پلوه په پنځه ډوله دي، چې پخوا د پښتو ژبپوهانو او لیکوالانو له خوا دا شکلونه غوره شوي او که پر ۱۳۲۹ل کال د باره ګلی د سیمینار پرېکړه ورسره یوځای کړو، نو دا شمېر اوس شپږو شکلونو ته رسېږي. دا پنځه یا شپږ شکلونه په حقیقت کې د څلورو بېلابېلو اوازونو ښکارندويي یا استازي کوي، چې دوه یې خپلواک غږونه یا واولونه دي او نور یې د ژبپوهنې د یوې دودیزې نومونې یا اصطلاح له مخې غبرګغږونه یا دیفتونګونه دي.

دپښتو یاګانو، دا څلور اوازونه په حقیقت کې څلور مختلف اوازونه دي، چې د پنځو نږدې همشکله ګرافیمونو په بڼه افاده کېږي، له همدې امله دا مختلف او بېلابېل اوازونه په دودیز ډول د یوه ګرافیم (ی ګانو) په نامه یادېږي، که په پیل کې دپښتو غږونو لپاره دلیکنښو یا ګرافیمونو د ایښودلو پرمهال دې څلورو

بېلابېلو اوازونو ته بېل بېل شکلونه غوره شوي وای نـو نـن بـه د پښتو (یاګانو) په لیکنی او ګړنی برخـه کـې هغـه سـتونزه او ناسـم پوهاوی نه رامنځته کېده، چې اوس کله کلـه پـه دې برخـه کـې پېښېږي، خو له دې سره سره پښـتو ژبپوهـانو او لیکپوهـانو هڅـه کړې د ټکو او ځینو نښو په زیاتون سره د دې اوازونو د افادې په بڼه کې اسانتیا راولي او دپښتو لیک لوستنه اسانه کړي.

د یادونې وړ ده، چې د پښتو (۷) واولونو له جملې څخه دوه یې همدا (یاګانې) دي، چې دکارونې خورا زیات ځایونـه او اړخونـه لري. له واول پرته طبعاً کلمه هډو جوړېدی نه شي، نو ځکـه کـه موږ دا دوه واولونه (ي = i) او (ې = e) محاسـبه کـړو نـو د پښـتو کلمو په سلو کې تر پنځه ویشتو زیاته برخه جوړوي. د دې واولونو ارزښت په دې کې دی چې نه یوازې د نوم یا فعل په اصلي بڼـه کې راځي، بلکې په مغیره حالت کې هم راځـي او د پښـتو ژبـې دګرامر یوه ځانګړتیا یا د ژبني سکښت یو خصوصیت دا دی، چې فعل، نوم، صفت یا قید پر خپل اصلي حالت سربېره دویم یا مغیره حالت هم لري او د جمعې هم، نو دا دوه واولونـه یـا (ی ګـانې) دکلمو په دغسې اوښتون کې اساسي نقش لـري. سـربېره پـر دې زورکي واله یا همزه واله (ۍ = ئ) او زوروالـه یـا نرینـه (ی) هـم دپښتو کلمو په جوړونه کې ډېر نقش لري، نـو دا ټـول چـې سـره یوځای شـي دا د پښـتو کلمـو یـوه ډېـره درنـه او غوښـنه برخـه جوړوي. که چېرې د هغو د ټاکل شویو شکلونو په واسطه دهغو د اوازونو سمه افاده او لیکنی بڼه ترسره نـه شـي او یـا یـوه د بلـې

پرځای وکارول شي، نو يقيني خبره ده، چې دپښتو متن په افـاده او لوستنه کې به ډېرې ستونزې رامنځته شي.

زه دلته غواړم لومړی دپښتو دمروجو پنځه واړو (ياګـانو) دسـمې کارونې ځايونه په ګوته کړم او بيا وروسته د (يا ګانو) په اړه خپـل يو نظر او وړانديز راوړم.

### ۱- نرمه، بې ټکو، زورواله يا نرينه (ی = ay):

دې (ی) ته نرمـه، بـې ټکـو، زوروالـه يـا نرينـه (ی) وايـي او د ژبپوهنې له معمول تعريف سره سم يو غبرګغـږ يـا ديفتونـګ ګڼـل کېږي، چې له يو خپلواک اواز (a) او يو نيمه خپلواک غږ (y) څخـه رغېـدلی دی. سـره لـه دې چـې يـو شـمېر اوسـني ژبپوهـان د ديفتونګ له معمول تعريف سره موافق نه دي او هر يـو بېـل اواز ګڼي، په هر ترتيب زورواله يا نرينـه (ی) لـه همـدغو دوو اوازونـو څخه رغېدلې ده او د يوې څپې په شان يو ځل له خـولې څخـه راوځي. د دې (ی) دکارونې ځايونه په دې ډول دي:

الف – دمفردو مذکرو نومونو په پای کې راځي، لکه:

سړی، منګی، لرګی، زمری، ډانګی، فرنګی او داسې نور...

کېدی شي دا نومونه حقيقي مذکر وي يا لفظي.

(حقيقي مذکر او حقيقي مونث هغو نومونو ته ويل کېږي، چې د نسل د توليد وړتيا ولري او لفظي مذکر او مونث هغـو نومونـو تـه ويل کېږي، چې د نسل د توليد وړتيا نه لـري، خـو لفظاً نرينـه او ښځينه ګڼل کېږي.)

ب – په ځينو نسبتي صفتونو يا ستاينومونو کې هم راځي، لکه:

توريالی، ننګيالی، زمريالی، بريالی او نور...

ج – په هغو فعلونو کې هم راځي، چې د مفرد مذکر نـوم لپـاره ګردان شوي يا اوښتي وي.
لکه: احمد ډېر ځورېدلی دی، محمود ډېـر کړېـدلی دی، لاس مې سوځېدلی دی.

د – د ځينو امکاني فعلونو په پای کې هم راځي. لکه:
زړه مې په ښو خبرو رغېدلای شي، استاد د زده کوونکو پـه ښـو اخلاقو خوشالېدلای شي.
وطـن پـه کـارونو ابادېـدلای شـي، ځمکـه د بزګـر پـه هڅـو زرغونېدلای شي.

## ۲- ځرګنده، لنډه يا معروفه (ي = i):

دا (ي) په پښتو کې يو خپلواک غږ (واول) دی، چې په پښتو متن کې ډېر زيات کارېږي د کارونې ځينـې مهـم ځايونـه يـې پـه دې ډول دي:

الف – دهغو مفردو مذکرو يا نرينه نومونو دجمعې لپاره راځـي، چې په نرينه (ی) پای ته رسېدلي وي، لکه:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| سړی | سړي |
| زمری | زمري |
| غويی | غويي |

| | |
|---|---|
| منګی | منګي |
| لرګی | لرګي |

او داسې نور...

ب – دهغو مفردو مذکرو نومونو دمغیره یا دویم حالت لپاره راځي، چې په نرینه (ی) پای ته رسېدلي وي، لکه:

| | |
|---|---|
| ( اصلي حالت) | (مغیره یا دویم حالت) |
| (سړی) کار کوي. | (سړي) کار وکړ. |
| (بریالی) درس لولي. | (بریالي) درس ولوست. |
| (زمری) د ځنګله پاچا دی. | له (زمري) څخه نور حیوانات وېرېږي. |

ج – د نسبتي صفتونو یا نسبتي نومونو په پای کې هم راځي، لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| خوشال | خوشالي | رحیم | رحیمي |
| خوښ | خوښي | کریم | کریمي |
| سوکال | سوکالي | ابراهیم | ابراهیمي |
| هوسا | هوسایي | او نور... | |

د – په یو شمېر کسبي نومونو کې، چې دیوې پېشې یا کسب ښکارندويي کوي، هم کارېږي، لکه:

ډولچي، سورنچي، توپچي، موچي، دوبي، جارچي او نور...

هـ - په یو شمېر فعلونو په تېره بیا د حال زماني په فعلونو کې هم استعمالېږي.

لکه: ځي، راځي، خوري، کړي، ښي، وړي، لولي، ناځي، پاځي او نور...

و- په پښتو کې د همدې غبرګبر (ay) په شان نور غبرګغږونه (oy)، (uy) هم شته، چې تراوسه لا ورته په پښتو لیکدود کې کومه خاصه بڼه په پام کې نه ده نیول شوې. دا غبرګغږونه ډېر زیات نه دي، نو هغه کلمې چې پر دې غبرګغږونو پایته رسېدلې وې، هم په همدې (ی) ولیکل شوې، نامعقول کار به ځکه نه وي، چې دا ډول غبرګغږونه تر نورو دې (ی) ته نږدې دي. لکه خوی (xuy)، بوی (buy) یا زوی (zoy) لوی (loy)، ځینې ضمایر لکه دوی، هغوی او ځینې نور نومونه.

## ۳- اوږده، مجهوله یا ښځینه (ې = e):

دا (ې) هم یو خپلواک اواز (واول) دی، چې په پښتو کلمو په تېره بیا په ښځینه نومونو کې زیات کارېږي. دکارونې ځینې مهم ځایونه به یې دلته په ګوته کړو:

الف – دا ښځینه (ې) دهغو مفردو مونثو نومونو دجمعې لپاره کارېږي، چې په ګرده (ه) یا زور (a) پای ته رسېدلي وي. لکه:

| مفرد | جمع |
| --- | --- |
| ډیوه | ډیوې |
| ښځه | ښځې |
| پاڼه | پاڼې |

| | |
|---|---|
| منه | منې |
| زرکه | زرکې او داسې نور... |

ب – دهغو مفردو مونثو نومونو دمغیره یا دویم حالت لپاره راځي، چې په همدې ګرده (ه) یا زور پایته رسېدلي وي، لکه:

| اصلي حالت | مغیره حالت |
|---|---|
| (ډیوه) رڼا کوي. | د (ډیوې) رڼا تته ده. |
| (ښځهٔ) د ژوند نیمه برخه ده. | بې له (ښځې) ژوندون ګران دی. |
| (پاڼه) ورژېده | د توت (پاڼې) رنګ مې خوښېږي. |
| (پلوشه) درس لولي. | (پلوشې) درس ولوست. |

ج – دهغو ښځینه صفتونو دجمعې او مغیره حالت لپاره هم راځي، چې په ګرده (ه) یا زور (a) پایته رسېدلي وي، لکه:

| مفرد او اصلي حالت | مغیره او د جمعې حالت |
|---|---|
| (ښه ښځه) | (ښې ښځې) |
| (ښه ښځه) ښه خوی لري | (د ښې ښځې) به ښه خوی وي |
| (سره ډیوه) | (سرې ډیوې) |

د – په هغو نسبتي صفتونو او فعلونو کې هم کارېږي، چې د ښځینه نومونو لپاره کارول شوي او یا ګردان شوي وي.

لکه:

| | |
|---|---|
| له (بدې ورځې) ژاړم. | ( د ښې ورځې) خاوند شې. |
| (نجونې ژړېدلې). | (خوینډې خندېدلې). |
| (تورې نڅېدلې). | (وراوې تېرېدلې) |

او داسې نور...

هـ - په ښځينه ضميرونو او مفردو حقيقي مونثو نومونو کې هم کارېږي، لکه:

دې، هغې، ناوې، ادې، خواښې     او نور...

د دې (ې) يو بله ښه ځانګړنه په دې کې ده، چې دکلمو په منځ کې هم خپل هويت ساتلای شي او ان که څوک وغواړي په دقيق ډول يې استعمال کړي، دکلمې په سر کې هم خپل هويت خوندي کولای شي، خو د کلمې په سر کې دومره دود نه ده، د کلمې په منځ کې، لکه:

(تېر) دېخوا تېر شوی او (تير) د دستک او لرګي په مانا

(پېر) دمهال په مانا او (پير) دلارښود يا مرشد په مانا.

## ۴- زورکيواله (ۍ = əy):

زورکيواله (ۍ = əy) د ژبپوهنې د معمولو تعريفونو له مخې يو غبرګغږ دی، يانې له دوو اوازونو څخه رغېدلې ده، چې يو زورکی (ə ) دی او بل سيمې واول (y) دی، چې يو يې خپلواک (ə) دی او بل يې (y ) بېواک يا نيمواک. په پښتو اوسنۍ الفبې کې د زورکي (ə) او زور (a) تفاوت نه ليدل کېږي او دواړه په دې بڼه (ه) ليکي، خو د باره ګلۍ په سيمينار کې د زور او زورکي لپاره (ه او ۀ) نښې منل شوي او دا يو ښه وړانديز دی. د زورکي واله (ۍ) بله برخه (y) نيمه خپلواک غږ دی، د استعمال ځايونه يې په دې ډول دي:

الف – په پښتو مفردو مونثو نومونو کې راځـي، کېـدی شـي دا نومونه یا حقیقي مونث وي یا نا حقیقي، خو په لفظـي ډول پـرې دمونث اطلاق کېږي، لکه:

ځولۍ، زمرۍ، نرۍ، ګلالۍ، ډوډۍ، څوکۍ، او داسې نور...

ب – د ځینو هغو نسبتي صفتونو دجمعې او مغیـره حالـت لپـاره راځي، چې پر څرګنده (ي) پایته رسېدلي وي، لکه:

| اصلي حالت | مغیره حالت |
|---|---|
| خوښي | خوښۍ |
| تربګني | تربګنۍ |
| دوستي | دوستۍ |
| خوشالي | خوشالۍ |

دا به په یوه مثال کې هم واضح کړو:

| (اصلي حالت) | (مغیره حالت) |
|---|---|
| د احمد او محمود ترمنځ دوستي ده. | د احمد او محمود د دوستۍ مزه نه شته |

## ۵- همزه واله ئ (əy):

دا هم یو غبرګغږ دی او له زورکي والې (ۍ) سره یې په سکښت، جوړښت او تلفظ کې هېڅ توپیر نه شـته، یـانې دا دوه غږونـه پـه حقیقت کې دیوې څپې په څېر یو ځل له خـولې څخـه راوځـي. پښتو لیکپوهانو د زورکي والې (ۍ) او همـزه والـې (ئ) د بېلتـون نښه او ضرورت همدا ګڼلی، چې یوه په نومونو او بلـه پـه فعلونـو

کې راځي. زه به دلته د پښتو لیکپوهانو له خوا د همزه والـه (ئ) د اوسني دودیز استعمال ځایونه په ګوته کړم:

الف – همزه واله (ئ) اکثره د امر او نهې فعلونـو پـه پـای کـې راځي، لکه: کښېنئ، پاځئ، وخورئ، مه خورئ، لاړشئ، مه ځئ او نور...

ب – د ځینو سوالیه جملو په پای کې هم راځي، البته دلته هـم فعلي حالت څرګندوي، لکه: تاسو ټولګي تـه راځـئ، تاسـو درس لولئ، په علمي غونډو کې برخه اخلئ او داسې نور...

د یـادونې وړ ده، چـې همـزه والـه (ئ)، زورکـي والـه (ۍ) او زورواله یا نرینه (ی) دکلمو په منځ کې خپـل هویـت سـاتلای نـه شي او ځای یې د څرګندې (ې) شکل نیسي، یـوازې دکلمـو پـه پای کـې دا (ی) ګـانې د شـکل لـه پلـوه خپـل هویـت سـاتلای شي،لکه: نړۍ+ وال = نړیوال یا کلی + وال = کلیوال

اوس دپښتو یاګانو، په اړه خپل نظر او وړاندیز څرګندوم:

لومړی دنومونو په اړه: پښتو (یاګانې) طبعاً د بېلابېلو اوازونـو ښکارندویې کوي، لکه څنګه چې هر اواز خپل یـو بېـل او واحـد نوم لري، نو په کار ده، چې د هغه ګرافیم یا شکل هم یو واحد او له اواز سره منطبق یو نوم ولري، لکه څنګه چې موږ په خپله نوره ابېڅې ( الفبې) کې دهر اواز لپاره دګرافیم یو مشخص نوم لـرو او هېڅ ستونزه په کې نه وینو نو دلته هم باید دنومونو د یو والي له

لارې دا ستونزه حل شي. په دې برخه کې زما مشخص وړاندیز دا دی، چې:

( ی = ay) ته دې نرینه (ی) وویل شي، ځکه چې دا د هغې دکارونې له ځایونو او مانا سره پوره پوره مطابقت کوي، په هر ځای کې چې دا (ی) کارېږي؛ فعل وي که صفت او یا که نوم وي، د هغو ټولو خصلت به نرینه وي یا به لفظاً او یا به هم د مانا له پلوه دنرینه ځانګړتیا ترې څرګنده شي، نو د (زوروالې) (نرمې) او (بې ټکو) نور نومونه دې ترې حذف شي، ځکه چې له مانا سره یې ډېر اړخ نه لګوي.

(ې = e): لکه څنګه چې (ی ay) د نرینه نومونو، صفتونو او فعلونو لپاره راځي دغسې ( ې = e) دمونثو نومونو، صفتونو او فعلونو لپاره راځي، نو په کار ده، چې ښځینه (ې) ورته وویل شي، چې له مانا سره یې مطابقت پیدا شي. دمجهولې یا اوږدې (ې) اصطلاحګانې ځکه سمې نه برېښي، چې د (مجهولې) اصطلاح موږ ته مجهوله نه ده او کېدی شي دعربي او دري ژبو ویونکو ته دا (ې) مجهوله وي او همغه تعبیر دلته سرایت کړی وي، نو کوم شی چې موږ ته مجهول نه وي، ولې د مجهول نوم پرې کېږدو؟

د یوه واول اوږد او لنډ تلفظ کول په مانا کې کوم تغییر نه راولي نو ځکه دا اصطلاح یا نوم هم له مانا سره اړخ نه لګوي، نو که دې (ې) ته همغه (ښځینه ې) نوم ورکړل شي، دا کار به له مانا سره مطابقت پیدا کړي.

د څرګندې یا معروفې ( ي = i) نومونه دومره بده نه برېښي، ځکه پښتنو او نا پښتنو ټولو ته څرګنده ده، نو که د لنډې (ي ) پر ځای همدا نوم غوره شي، څه ستونزه ترې نه پیداکېږي.

د زورکیوالې او همزه والې ( ۍ، ئ) په اړه زما نظر دا دی، چې دا دواړه په حقیقت کې یو اواز دی او یا د یـوه غـږ دوه شـکلونه دي. موږ په نورو ځایونو کې د پښتو الفبې په برخه کې په واقعیت کې د اوازونو لپاره شکلونه نه لرو او د اوازونـو بـاقي یـا پـوروړي یاستو، لکه د زورکي (ə ) لپاره هم تراوسه پـورې د (ه) شـکل او د زور (a) لپاره هم دا (ه) شکل کاروو. سره له دې چې د باړه ګلـۍ سیمینار د زورکي لپاره (ۀ) شکل غوره کړ، خو تراوسه لا پوره دود شوی نه دی او هم د (u) او (o) دوو اوازونو لپاره یو یو شـکل ( و) لرو، خو دلته بیا د یـوه اواز (əy) لپـاره دوه شـکله (ۍ= ئ) لـرو. پښتو ژبپوهـانو او لیکپوهـانو دهمـزه والـې (ئ) د ضـرورت وجـه (فعلي افاده) ګڼلې، نو که د فعل، نوم او صفت د تثبیت لپاره مـوږ د اوازونو شکلونه بدلوو، نو بیا خو هغـه نـورې (ې،ي،ی) ګـانې هم په فعلونو، صفتونو او نومونو کې راځي، نو هغـو تـه مـو ولـې بېلابېل شکلونه غوره نه کړل؟ لکه:

ی = سړی (نوم) بریالی (ستاینوم) کړېدلی دی (فعل)

ي = سړي (نوم) ننګیالي (توصیفي یا ستاینوم) خوري، ځي (فعل)

ې = ناوې (نوم) تودې/ سړې (صفت) خندېدلې، ګرځېدلې (فعل)

نو دلته ولې دا (ی،ي،ې ګانې) دمحتوا له مخې پر شکلونو ونـه وېشل شوې؟ زورکیواله او همزه واله (ۍ،ئ) په حقیقت کې د یوه اواز ښکارندویې کوي او د یـوه اواز د تثبیـت لپـاره یـوازې یـوه ګرافیم یا توري ته اړتیا ده او بس. د یوه غږ لپاره د بېلابېلو تـورو شتوالی دا مانا ورکوي، چې موږ د یوې ژبې لپاره په یـوه واحـد لیکدود کې څو الفباوې ولـرو او دا د ژبـې زده کـړه او تدریسـي چارې سختوي. زما وړاندیز دا دی، چې همزه والې (ئ) ته هېڅ

اړتیا نه شته او دا پر ژبه یو زیاتی بار دی، نو ګټه نه لري، باید لـه پښتو الفبا څخه حذف شي.

د باره ګلی په سیمینار کې چې د (یـا) یـو بـل شـکل (ے) پـه اختیاري ډول منل شوی هغې (ے) ته هم هېڅ اړتیا نه شـته او دا پر پښتو ژبه د اردو ژبې د اغېـز ښـکارندويي کـوي او د اسـتعمال ځایونه یې په نورو (یا ګانو) افاده کېدی شي.

پښتو لوستونکو ته مې د (یاګانو) دزده کړې په برخه کې وړاندیز دا دی چـې د (یاګـانو) نومونـو د زده کـړې پرځـای د (یاګـانو) دتلفظ او د هغو د استعمال ځایونو ته زیاته توجه وکـړي، نومونـه (اصطلاح) کېدی شي، دسړي له یاده وځي، خو د (یاګانو) دقیـق تلفظ او په حافظه کې د هغو د شکل ساتنه د (یاګـانو) لـه دقیقـې کارونې سره مرسته کولای شي. لوسـتونکي کـولای شـي لانـدې شعار د (یاګانو) د استعمال د یوه لنډ فورمول په توګه په پـام کـې ونیسي او په هره کلمه کې چې ( یا ګـانې) کـارول شـوې وي، د همدې فورمول له مخې یې دتلفظ په پام کې نیولو سره وکاروي:
دا فورمول دا دی:

**تل دې وي سوله په ټوله نړۍ کې – سره یو شئ دا مو شعار دی.**

پورتني فورمول کې د هرې (یا) شکل او تلفظ په پام کې ونیسئ او په هره کلمه کې چې (یا) کارېدلې وي، هغـه لـه دې تلفـظ او شکل سره منطبق کړئ، نو کېدی شي په سم ډول یې وکاروئ.

# دریېم څپرکی

## په پښتو کې د مغیره حالت سمه لیکنه

پښتو د هغو ژبو په ډله کې ده، چې (نوم) د حالت له مخې هم په کې تغییر کوي، یانې دا چې د جملې د کارونې پرمهال نوم پر خپل اصلي یا لومړني حالت سربېره دویم حالت ان دریېم حالت هم لرلای شي. په (دري) او ځینو نورو ژبو کې نوم خپل یو حالت لري. په پښتو کې که نوم چېرې مفرد وي، نو په جمله کې یې د موقعیت له مخې د بنې د بدلون دوه احتماله شته او که چېرې جمع وي د جمعې د دوو حالتونو او همدارنګه د دوو مغیره حالتونو احتمال یې شته. دلته به لومړی د نومونو اصلي (لومړني) او مغیره (دویم) حالت ته اشاره وکړو او بیا به پر دې هم رڼا واچوو، چې د کومو نومونو د دویم یا مغیره حالت په برخه کې لیکنۍ تېروتنې کېږي. تر ټولو لومړی هغه نومونه چې یوازې یوه بڼه لري او مغیره حالت نه لري.

**۱- ثابت او نامغیر نومونه:** دا هغه نومونه دي، چې یوازې یو حالت لري، چې په مفرد ډول کارېږي، په یوه حالت کې هم تغییر نه کوي، دې کې دغه نومونه شامل دي:

**الف-** هغه لفظي مفرد یا جمع نومونه، چې پر زورکیواله (ی əy) پای ته رسېدلي وي، په یوه حالت کې هم مغیر حالت نه

لـري، دا نومونـه پـه دې ډول دي: نـرۍ، مـرۍ، ډوډۍ، ګـرۍ، ګلالۍ، ملالۍ، شړۍ، وړۍ او داسې نور، خو که دا نومونه بيا پـه همدې خپل شکل ونه ليکل شي، نو د تلفظ پرمهال يې ستونزې راولاړيږي او يو ناپښتو ژبی يې په سمه بڼه نه شي ويلای، لکـه د (ګلالۍ) او (ګلالی) توپير يا هم د (مړۍ) او (مـړی) تـوپير نـه شـي کولای، نو ځکه خو د دې نومونو سم ليکنی توپير په کار دی.

ب- هغه نومونه چې پر الف (ā) پای ته رسېدلي وي، څه مفـرد مذکر وي، څه مفرد مونـث، څـه لفظـي مـذکر يـا مونـث وي څـه حقيقي، مغيره حالت نه لري.

لکه ملا، بلا، کلا، نيا، خندا، ژړا، ځلا، ښکلا او داسې نور...

دا که د جملې په هر موقعيت او حالت کې په خپله مفـرده بڼـه وکارول شي، تغيير نه کوي. د دې ډول نومونو يا کلمو په ليکنـۍ برخه کې د نظر اختلاف او توپير نه شته، نو ځکه يې په ليکنـۍ او ګړنۍ برخه کې کومه ستونزه هم نه تـر سـترګو کيـږي، البتـه کـه پورتني نومونه د جمعې په بڼه راوړل کېږي، د جمعـې بڼـه يـې د جملې د سکښت، جوړښت او په هغې کې د دې نومونو د دريـځ له مخې، د جمعې اصلي او مغيره بڼې لرلای شي.

۲- بدلېدونکي نومونه: هغه نومونه دي، چې په جمله کـې د خپل موقعيت له مخې بدلون مومي او بڼه يـې بـدلېږي، يـانې دا ډول نومونه که مفرد حالـت ولـري کـه جمـع، دواړه يـې مغـيره حالتونه لري، په ليکنۍ برخه کې که د دې نومونو سمه بڼه وليکل

**شي، نو په تلفظ کې به يې اساني راشي. دلته بـه د دې نومونـو بېلګې وړاندې کړو:**

**الف- هغه نومونه چې پرکانسونينټ يا چوپ تورو پايته رسـېدلي وي، دوه مغير حالتونه لري، يو په ندايي او بـل هـم د بېلتـون او پيوستون په حالت کې. دلته به يې څو بېلګې وړاندې کړو.**

| اصلي حالت | ندايي حالت | د بېلتون يا پيوستون حالت |
| --- | --- | --- |
| احمد | احمده! | له احمده مې زړه شين دی. |
| سلطان | ای د زړه سلطانه! | له سلطانه پوره نه شوه. |
| جانان | جانانه راشه چې پخلا شو! | بېګاه مې خوب کې وکړ له جانانه سره جنګ. |
| غر | ای د شمشاد غره! | د غره پر څوکه لار ده. |
| بلبل | زما د زړه بلبله! | د زړه حال مې له بلبله پوښته. |
| قلم | قلمه ښکل به دې کړم نوم د جانان وليکه! | بې کتاب و قلمه، وطن نه رسېږي. |
| مور | مورې لپه دې له دعاوو ډکه اوسه! | خدای(ج) دې بې موره او بې پلاره مه کړه. |

**سره له دې د پورته مغيره حالتونو پـه ليکنـۍ برخـه کـې ډېـرې خاصې ستونزې نه شته، خو بيا يې هم ځينې خلک په سم ډول نه ليکي او له ګرامري پلوه يې سم نه کاروي.**

**ب- په پښتو کې ځينې شخصـي ضـماير داسـې دي، چـې دويم حالت هم لري، خو په پښتوـ عربي ليکدود کې د ځينو ضـميرونو د دويم حالـت ليکنـه مشـکله ده، همـدا وجـه ده چـې ځيـنې ويندويان د خبرونو پرمهال هغـه ناسـم لـولي او د جملـې مانـا او محتوا ورسره بدلېږي، دلته به پښتو کې شخصي ضميرونو تـه هـم نغوته وکړو.**

| | اصلي حالت | مغیره حالت |
|---|---|---|
| مفرد | زه | ما |
| | ته | تا |
| جمع | موږ | موږ |
| | تاسې/ تاسو | تاسې/ تاسو |
| مفرد مذکر | دی | ده |
| مونث او مذکر جمع | دوی | دوی |
| مفرد مونث | دا | دې |
| مفرد مذکر | دغه | دغه |
| مفرد مونث | دغه | دغې |
| جمع/ مونث مذکر | دغو | دغو |
| مفرد مذکر | هغه | هغه |
| مفرد مونث | هغه | هغې |
| مونث او مذکر جمع | هغو | هغو[1] |

دلته به دا هر يو ضمير په اصلي او مغيره بڼه په يوه جمله کې وکاروو:

۱- د پښتو ګرامر، هربرت پنزل، د محمد رحيم الهام ژباړه، ۱۳۴۰ل کال، دولتي مطبعه ۱۳۴-۱۳۵ مخونه.

| مغیره حالت | اصلي حالت |
|---|---|
| ما درس ولوست (زه) پر (ما) بدل شو | زه درس لوله |
| تا درس ولوست (ته) پر (تا) بدل شو | ته درس لولې |

د متکلم ضمیر د جمعې حالت یې یوازې یوه بڼه لري او مغیره حالت نه لري.

| | |
|---|---|
| ده درس ولوست | دی درس لولي |
| دې درس ولوست | دا درس لولي |

| | |
|---|---|
| دغه هلک درس ولوست. | دغه هلک درس لولي |

دغه(daǧa) پر دغه (dəǧə) واوښت

یانې (زورونه) پر (زورکیو) بدل شول (ə=a)

| | |
|---|---|
| دغې جلۍ درس ولوست | دغه جلۍ درس لولي |
| هغه ځوان درس ولوست. | هغه ځوان درس لولي |

دلته هم هغه (haǧa) پر هغه (həǧə) بدل شو.

| | |
|---|---|
| هغې پېغلې درس ولوست | هغه پېغله درس لولي |

(هغه) پر (هغې) او پېغله پر پېغلې بدل شول.

د پورتنیو ضمایرو د اصلي او مغیره استعمال په لیکنۍ برخه کې په مجموعي ډول زیاتې تېروتنې نه کېږي، یوازې د (دغه) او (هغه) په اصلي او مغیره حالت کې ستونزه شته، ځکه چې په پښتو لیکدود کې د دواړو توپیر مشکل دی. البته د زورکي(ə) لپاره د باړه ګلۍ د سیمینار دا (ۀ) وړاندیز شوې بڼه که په پام کې ونیول شي نو دا مشکل به تر ډېره حده حل شي، په تېره بیا د وروستۍ څپې زورکی به سم افاده شي، خو د لومړۍ څپې زورکی، چې

هغه هم د اصلي حالت له زور(a) څخه پر زورکي (ə) اووښتی، بیا به هم سم افاده نه شي او یوازې فونیمیکه الفبې د دې وس لري، چې اصلي او مغیره حالت په دقیق ډول انځور کړي.
وګورئ پښتو دودیز او فونیمیک لیکدود کې دا حالتونه:

| | |
|---|---|
| هغه هلک درس لولي. | haǧa halək dars lwali |
| دغه هلک درس لولي. | daǧa halək dars lwali |
| هغه هلک درس ولوست. | həǧə halək dars wəlwast |
| دغه هلک درس ولوست. | dəǧə halək dars wəlwast |

په دواړو ضمایرو: هغه (haǧa) او دغه (daǧa) کې کله چې له حال زماني څخه ماضي ته اوړي، زورونه (a) پر زورکیو (ə) بدلیږي، څرنګه چې دا بدلون په پښتو الفبایي سیستم کې په ښه ډول انځوریدلای نه شي، نو ځکه خو هغه کسان چې مورنۍ ژبه یې پښتو نه ده او یا هم پښتو یې له ګړني پلوه سل په سلو کې پخه نه ده، د دې ضمایرو د اصلي او مغیره حالتونو توپیر سم نه شي کولای او کله چې د دې ډول ضمیرونو کاریدونکې جملې کاروي، نو لفظي تیروتنې کوي.
پر ضمایرو او پورتنیو نومونو سربیره په پښتو کې هغه نومونه، چې د کلمې په منځ کې و ( o یا u) ولري، مغیره حالت لري او په تغییریدونکي حالت کې (و) پر الف (ā) بدلیږي او په پای کې یې زورکی (ə) زیاتیږي، لکه:

| | |
|---|---|
| پښتون | پښتانه |
| زوړ | زاړه |

موږ مارږه
زنګون زنګانه

ځينې يو ځپيز نومونه او صفتونه هم مغيره حالت لري، چې په زورکي(ə) پای ته رسېږي، لکه:

اوم اومه
مل مله
مږ مږه
اوږد اوږده
شين شنه
سور سره .. او داسې نور

خو په پښتو کې هغه نومونه، چې تر ټولو زيات مغيره حالتونه لري دا دي:

۱- هغه نومونه چې په زور (a) پای ته رسېدلي وي، په تېره بيا هغه نومونه چې په لفظي يا حقيقي ډول مفرد مونث وي، د دې نومونو جمع او مغيره حالت پر ښځينه يا اوږده (ې) پای ته رسېږي، لکه:

| مفرد اصلي حالت | مفرد مغيره حالت | د جمعې حالت |
|---|---|---|
| تخته | د تورې تختې رنګ | تختې |
| لښته | د لښتې پاڼې | لښتې |
| ونه | د ونې سيوری | ونې |
| سترګه | د سترګې ليد | سترګې |
| مڼه | د مڼې رنګ | مڼې |

د دې نومونو د اصلي او مغیره حالت په لیکنۍ بڼه کې څه ستونزه نه پېښېږي، خو که د ( ې) پر ځای بله یا ( ئ) ، ( ي)، (ی) او یا هم (ۍ) وکارول شي، مانا یې بدلولای او تلفظ یې سختولای شي.

۲- د مغیره حالت نور ډېر کارېدونکي نومونه یا صفتونه همغه دي، چې په نرینه، نرمې یا زوروالې (ی = ay) پای ته رسېدلي وي. دا ډول نومونه یا صفتونه دویم یا مغیره حالت لري، د یادونې وړ ده، چې د دې نومونو جمع او مغیره حالت دواړه په یو ډول تر سره کېږي او دواړه په څرګندې یا معروفې یا (ي= i) پای مومي. دلته به مورږ د دې نومونو یا صفتونو اصلي یا مغیره حالت ته نغوته وکړو.

| | |
|---|---|
| بریالی ډوډۍ خوري. | بریالي ډوډۍ وخوړه. |
| توریالی خاندي. | توریالي وخندل. |
| د ادب پوهنځی مې خوښ دی. | د ادب پوهنځي محصل یم. |
| ګلالی درس لولي. | ګلالي درس ولوست. |

او همداسې په لسګونو بېلګې...

که چېرې د دې نومونو د اصلي او مغیره حالت توپیر ونه شي، نو هم یې په مانا کې توپیر پېښېږي او هم په تلفظ کې. په ځینو ملي او نړیوالو رسنیو کې چې د پښتو (یاګانو) کارونه په دقیق ډول نه تر سره کېږي، ویندویان د متن په لوستنه کې له ډېرو

تېروتنو سره مخامخېږي، خو له نېکه مرغه چې د دې نومونو اصلي، مغيره او د جمعې حالت په استعمال کې څه ليکنۍ ستونزه نه شته، ټولو پښتو لوستوالو او ليکوالو ته په کار دي، چې د دې نومونو ليکني سمون او سم استعمال ته ډېر پام وکړي، ځکه هغه ستونزه چې د نورو نومونو په ليکنۍ برخه کې شته، دلته هغه ستونزه نه لرو.

# څلورم څپرکی

## په پښتو کې د کلمو سمه لیکنه

**کلمه:** داسې یو ژبنی عنصر دی، چې تر یوه زیاتو اوازونو څخه رغېدلې وي او مانا ورکوي، که چېرې پـر بېلابېلـو غـړونو ووېشـل شي مانا له لاسه ورکـوي او پـر بـې مانـا غـړونو بـدلېږي. ځینـې ژبپوهان د کلمې او مورفیم توپیر همدا ګڼـي، چـې کلمـه یـوه لغوي مانا لري، خو مورفیم یو لفظي واحد دی، کېدی شي مانـا ولري او یا یې ونه لري.دا چې د ګرامر له پلوه کلمې پر څو برخو وېشل کېږي او په جمله کې د موقعیت له مخې د هغو مانـا څـه ډول اوړي را اوړي، پر دې باندې دلته بحث نه کوو، دلته مـوږ یوازې پر دې غږیږو، چې کلمه نوم دی، که صفت، فعل دی او که قید او یا هم بل کوم څه؟ څه ډول لیکل کېـږي؟ ځکـه دلتـه زموږ کار لیکني سمون سره دی.

**۱- خپلواکې یا نا ترکیبي کلمې:** هغه کلمې دي، چـې پـه مستقل ډول مانا ورکوي؛ له کومې بلـې کلمـې یـا مـورفیم څخـه رغېدلې نه وي او له اوازونو پرته پر نورو برخو د وېش وړ نـه وي. د دې ډول کلمو په لیکنه کې ډېره ستونزه نه شته پـه تېـره بیـا

چې دا ډول کلمې پر کانسونينټ پای ته رسېدلي وي، دلته به دې ډول کلمو ته اشاره وکړو:

**الف- پر کانسونينټ پایته رسېدلې کلمې:** هغه کلمې چې پر کانسونينټ پای ته رسېدلي وي، هغه مفردې وي که جمع، ښځينه وي که نرينه، په ليکنه کې يې ډېرې ستونزې نه شته، لکه:

لاس، ګل، اس، نوک، غر، لمر، سيند، مور، خور، ورور، کور، تور، غم او داسې نور...

**ب- پر واول (زور= a) پایته رسېدلې کلمې:** هغه کلمې يا نومونه چې پر زور (a) يا هم په زورکي (ə) پای ته رسېدلي وي، د هغو په ليکنۍ برخه کې يوه څه ستونزه شته، هغه پښتون چې مورنۍ ژبه يې پښتو وي او يا هم هغه کسان چې پښتو ژبه يې ښه پخه زده وي، هغوی ته يې توپير او لوستنه مشکل نه دي، خو هغه څوک چې له ليکه پښتو ژبه زده کوي، هغو ته يې سم تلفظ مشکل کار دی، لکه:

| شنه (Šna) ( صفت مفرد مونث) | | | | شنه(Šnə) ( صفت مذکر جمع) |
|---|---|---|---|---|
| غله (ğala ) | // | غله | ğlə | // |
| سره (sra) | // | سره | srə | // |
| پړه (pṛa) | // | پړه | pṛə | // |
| زړه (zaṛa) | // | زړه | zṛa | (نوم مفرد مذکر) |
| تره (tara) | // | تره | trə | // |

دلته بيا هم يادونه کېږي، چې کـه د زورکـي لپـاره د (ۀ) شـکل دود شي، نو د دې کلمو دقيق ضبط به په سلو کـې اتيـا اسـان شي او پاتې شل په سلو کې بيا هم د فونيمکي ابڅې پـه مـټ حلېدی شي.

ج - پر (ياګانو) پايته رسېدلې کلمې: هغه کلمې چې د پښتو (پنځه ياګانو) په حقيقت کې له (څلورو ياګانو) څخه پر يوې پای ته رسېدلي وي، که په ليکنه کې يې د (يا ګانو) له دقيقې کارونې ګټه پورته نه شي، نو هم د کلمې په تلفظ او هم د مانا پـه افـاده کې ستونزې راولاړېږي. دلته به يې څو مثالونه وړاندې کړو.

| ناسم | سم |
|---|---|
| احمد ډوډی وخوړه. | احمد ډوډۍ وخوړه. |
| بريالی احمد وواهه. | بريالي احمد وواهه. |
| راځی چې درس ولولو. | راځئ چې درس ولولو. |
| د ده رنګ د سړی نه دی. | د ده رنګ د سړي نه دی. |
| هوسی راغله. | هوسۍ راغله. |

۲ – ترکيبي کلمې: هغه کلمـې دي، چـې لـه دوو خپلواکـو کلمو يا مورفيمونو او يا هم له يـوې خپلـواکې کلمـې يـا يـوه نـا خپلواک مـورفيم څخـه رغېـدلې وي او لـه دې نـوي ترکيـب يـا جوړښت څخه يې يوه نوې مانا لاسته راغلې وي.

تر کيبي کلمې هم پر دوو ډولو وېشل کېږي:

**الف – هغه ترکیبي کلمې چې د پیوستون وړتیا ونه لري: که له دې کلمو سره دویم عنصر یوځای هم شي بیا هم خپل جلا شکل ساتي، لکه:**

| مفرد | ترکیب یا جمع | |
|---|---|---|
| غر | غرونه | |
| سیند | سیندونه | |
| وزر | وزرونه | |
| ښکر | ښکرور | |
| زور | زورور | |
| خبر | خبریال | |
| پکتیا | پکتیاوال | او داسې نور |

**په دې کې (ونه)، (ور) ، (یال) او (وال) روستاړي دي، چې ماقبل ورسره د پیوستون وړتیا نه لري، خو نورې داسې ترکیبي کلمې شته، چې همدا روستاړي ور سره نښلېدلای شي. که په دې حالت کې بیا دا وروستاړي ترې جلا ولیکل شي، نو د کلمې لیکنی عیب ګڼل کېږي. لکه:**

| مفرد | ترکیب یا جمع | |
|---|---|---|
| غم | غمونه | |
| بحث | بحثونه | |
| ننګ | ننګیالی | |
| سمون | سمونوال | او داسې نور |

ب – هغه کلمې چې د پيوستون وړتيا لري: هغه ډول ترکيبي کلمې دي، چې له دوو زياتو بېلابېلو اجزاو څخه رغېدلي وي او يوه نوې مانا ترې لاس ته راغلې وي، دا ترکيبي کلمې د يو ځای ليکلو وړتيا لري او بايد يو ځای وليکل شي خو په ليکنۍ برخه کې يې له ځينو ليکوالو تېروتنه کېږي او په جلا جلا ډول يې ليکي، يانې دواړه ترکيبونه بېلابېل ليکي، لکه: (ويی) يا (لغت) چې يو خپلواک مورفيم دی، که له ده څخه موږ د (پوهنه) په يو ځای کولو سره بل ترکيبي لغت جوړوو، نو بيا يې جلا جلا نه ليکو، لکه: (ويي پوهنه) که په دې ډول وليکل شي نو بيا هم په اسانۍ سره د يوې واحدې مانا لپاره د يوه ترکيبي لغت په توګه کار نه شي ورکولای. سمه او درسته بڼه يې داده چې په ترکيبي او يو ځايي ډول وليکل شي ؛ (ويپوهنه)، لکه د پوهاند زيار (( پښتو ليکلار)) دا سمه نه ده، چې موږ ( ليک) جلا او (لار) جلا وليکو، لکه د (لغت پوهنه) [1] په نامه چې يو ډېر مهم علمي کتاب ليکل شوی، د لغتونو د جوړښت په اړه بڼه هر اړخيز علمي او ژورو بحثونه لري، خو د کتاب په عنوان کې دا تېروتنه هماغسې پاتې شوې ده.

د ترکيبي کلمو تر ټولو غوره او ښه لاره دا ده ، هغه ترکيب چې د يو ځای ليکلو وړتيا ولري، بايد يو ځای وليکل شي او هغه چې هېڅ وړتيا نه لري، مجبور ياستو هغه جلا جلا وليکو. لکه پکتيا+ وال = پکتياوال. مجبور ياستو جلا وليکو. ځکه چې د

( ۱) لغت پوهنه، څېړنوال دوکتور دولت محمد لودين، پښتو ټولنه، کابل، ۱۳۵۵ ل کال.

**ترکیب د لومړۍ برخې وروستی (الف) له خپلې وروستۍ کلمې یا مورفیم سره د پیوستون وړتیا نه لري، خو په (غزني) + ( وال) کې چې دا وړتیا شته، نو بیا یې باید ضرور یو ځای ولیکو، لکه: غزنیوال، ارغندیوال، زرملوال، سمونوال او داسې نور...**

**د ترکیبي کلمو څو نور مثالونه :**

**یرغلګر**

**بلوسګر**

**هېیوال**

**نړیوال**

**ټولګیوال**

**څوکیوال**

**پوځیوال**

**ښکیلاکګر**

**ورانکار**

**نیواکګر**

**ټګمار**

**غمجن**

**ګټیالی**

**کتنپلاوی**

**چاپګر**

**لوبغاړی**

**ځانساتی**

**ورځچاری**

خیانتکار
امانتکار
سستکار
نړیخور
ګډونوال
ولسواک
پانګوال
رښتینوال
ولسپال
ټولنوال
پرګنوال
ځمکواکي
نړیواکي
تمځی
پوهنځی
سمونځی
پالنځی
پخلنځی
لوبځی
ښویندی
ښکېلاک
زبېښناک
ورېښمین

**پرتمین**
**لېونتون**
**هېڅکله**
**مخنیوی**
**بنسټوال او داسې نور...** [1]

**په پښتو کې لا هم یو شمېر داسې کلمې شته، چې تر اوسه یې په لیکښه کې سم سـمکی نـه دی راغلـی، اکثریـت نـه، خـو ځیـنې لیکوال یې سمې نه لیکي، د دې کلمو لپاره هـم بایـد یـو معیـار ومنل شي. یو خو هغه کلمې دي، چې د پښتو ټـولنې لـه پرېکـړو سره سم په هغوی کې سمون راغلی او اوس پـه سـمه بڼـه لیکـل کېږي او ځینې کسان لا اوس هم ترې سر غـړاوی کـوي او یـا پرې نه پوهېږي. موږ به دلتـه پـه بېلابېلـو وختونـو کـې د پښتـو ټولنې لـه خـوا شـوې پرېکـړې راوړو، لـه نېکـه مرغـه چـې دا پرېکړې تر زیاته حده تطبیق شوي، خو له هغـو پرېکـړو وروسـته ځینې نورې داسې کلمې هم شته چې اوس یې هم په لیکلو کې اختلاف شته. پر هغو به هم لنډه رڼا واچوو.**

## ۳- د ځینو اختلافي کلمو په اړه د پښتو ټولنې پرېکړې:

### الف- لومړنۍ پرېکړه:

**د ۱۳۲۱ ل کال پر جوزا (۱۹۴۲م کال،جون ) د پښتو ټولنې پـه غوښتنه د افغانستان پنځه ویشت (۲۵) تنـو لیکوالـو او پوهـانو پـه**

---

[1] - پښتو لیکلار، پوهاند زیار، ننګرهار پوهنتون، ۱۳٦۰ ل کال ۲۱۷- ۲۲۰ مخونه.

پښتو ټولنه کې غونډه وکړه او پر یو دېرش(۳۱) اختلافي موادو باندې يې تر بحث وروسته فيصله وکړه، چې دا لاندې کلمې بايد داسې وليکل شي:

| اختلافي صورتونه | فيصله شوي صورتونه |
|---|---|
| شونډې – شونډان | شونډې |
| کښېناست- کښېنوست | کښېناست |
| ټول خلق- ټوله خلق | ټول خلق |
| ټولې خبرې – ټوله خبرې | ټولې خبرې |
| پاته – پاتې | پاتې |
| که راغلی وای- که راغلی وی | که راغلی وای |
| لويه – لو | لويه |
| تويه – تو | تويه |
| مېږونه- مږونه (او داسې نور) | مېږونه . |
| وليد، وليدو، وليدئ، ومو ليدلو | وليد په ټولو ماضي ګانو |

کې دغه يو شکل غوره شو، مګر په ځينو کې به په اخره کې (ه) هم ورزياتوي، لکه: وواهه.

| | |
|---|---|
| لُخ، لوخ | لُخ |
| وشو، وسو | وشو |
| شوی، سوی | شوی |
| شته، سته | شته |
| شی، سی | شی |
| لره ډوډی، لرې اوبه، لر ډوډی، لر اوبه | لره ډوډی، لرې اوبه |

| | |
|---|---|
| ښې خبرې ، ښه خبرې | ښې خبرې |
| غږ، غګ، غاګ | غږ ، ژغ |
| ځینې وایي، ځنې وایي | ځینې وایي |
| له ده ځنې ، له ده ځینې | له ده ځنې |
| چلوونکی، چلونکی | چلوونکی |
| ښوونکی، ښونکی | ښوونکی |
| ښوونځی، ښونځی | ښوونځی |
| کښې، کښ، کې | کښې |
| (پرې، په) په داسې مثالونو کې: | |
| احمد سترګې لري مګر لار | پر |
| پرې نهویني، په نه ویني | |
| ویل، ویله | ویل |
| ولاړ، لاړ | ولاړ |
| وکړ، وکی، وکه | وکړ |
| وکړئ، وکئ | وکړئ |
| مونږ، موږ | مونږ |
| زما، زمونږ، ځما، ځمونږ | زما، زمونږ |
| زه، ځه | زه |

یادونه: وروسته بیا د درېیمې غونډې په فیصله کې لومړۍ فیصله داسې تعدیل شوه:

| | |
|---|---|
| لومړۍ پرېکړه | تعدیل شوی حالت |
| پاته | پاتې |

| | |
|---|---|
| مونږ | (مونږ،موږ) دواړه ومنل شو. |
| ولاړ | (ولاړ، لاړ) دواړه صورتونه ومنل شول. |
| لُخ | لوخ |

## ب- دویمه پرېکړه:

د ۱۳۲۷ل کال د سنبلې پر اتمه (۱۹۴۸م کال د اګست پر ۲۰مه ) نېټه په کابل کې د پښتو ټولنې په غوښتنه د لرې او برې پښتونخوا نولسو (۱۹)تنو پښتنو لیکوالو او پوهانو د پښتو لیک د ځینو اختلافي موادو په اړه داسې فیصله وکړه:

| اختلافي صورتونه | فیصله شوي صورتونه |
|---|---|
| ڼ، نړ | ڼ |
| زه، ته، ده- زۀ، ته، ده | (زه، ته، ده) بې همزه په ټولو دغسې مثالونو کې |
| اوربدل، اخیسل، آوربدل،آخیستل | اوربدل، اخیستل (بې مده) |
| ولید، وګوره، اولیدو، اوګوره(اوداسې نور) | ولید، وګوره ( بې الفه) |
| مې، دې، پرې، لاندې، باندې ـمِ، دِ، پرِ،لاندِ، باندِ | مې، دې، پرې، لاندې، باندې |
| لومړی،کوچنی،ګوډ،ګوته، بوخت_ لمړی، کچنی،ګُډ،ګُته،بُخت | لومړی،کوچنی،ګوډ،ګوته، بوخت |
| چاپ، ګړی- چهاپ، ګهړی | چاپ، ګړی |
| (ښ) | دا توری به د ((ش)) او د ((خ)) په ځای نه لیکو |
| (ږ) | دا توری به د ((ژ)) او د ((ګ)) په ځای نه لیکو |
| (ځ) | دا توری به د تلل د مصدر په حال فعل او دغسې نورو افعالو کې لیکو لکه: ځي، بوځي، راځي. |

| | |
|---|---|
| ویل، وی | ویل(یوازې په شعر کې ((وی)) جایز دی. |
| کښې، کښ | کښې |
| د ماضي بعید ضمیرونه | (وم، وو، وی، و، وه، وې) یـــانې د مفـــرد غایـــب لپاره دوه (وو) لیکل کېږي. |
| د شول د مصدر مشتقات | شوم، شوو، شوې، شول، شوه، شوي باید ولیکل شي. |
| د ټولو افعالو د مذکر جمع | پـه (لام) لیکـل پـه کـار دي، لکه: راغلل،ولیدل. |
| ټولې مطلقې ماضي ګانې | باید داسې ولیکـو: ولیـد، وکـوت، وکـړ مګـر وتـاړه، وواهه باید په اخر کې (ه) ولري. |

## ج- درېیمه پرېکړه:

د ۱۳۳۷ل کال د سنبلې پر اتمه (۱۹۵۸م کال) د پښتو ټولنې پـه بلنه د شمالي او جنوبي پښتونخوا پښتانه لیکوال او پوهـان کابـل ته د خپلواکۍ د جشن په ورځو کې راغلي وو، د سنبلې پر پنځمـه (د اګست پر ۲۷مه ) نېټه د پښتو لیـک پـه اړه مجلسـونه او ادبـي بحثونه شروع شول، وروسته تر څو غونډو، بحثونو او ډېـرو څېړنـو د ځینو اختلافي موادو په اړه دا ډول پرېکړه وشوه:

| اختلافي صورتونه | فیصله شوي صورتونه |
|---|---|
| ځمکه، مځکه، زمکه | ځمکه |
| زمری، مزری، ځمری | زمری |
| کښته، ښکته، خکته | کښته |

| | |
|---|---|
| پښه، ښپه، خپه | پښه |
| کښل، ښکل( د ليکلو او وېستلو په مانا) | کښل |
| کښلی ( د ښايست په مانا) | ښکلی |
| ماسخوتن، ماخوستن | ماسخوتن |
| ورځ، روځ | ورځ |
| موږی، مېږوی | موږی |
| لويشت، ولېشت | لوېشت، لوېښت |
| ورک، روک | ورک |
| خسر، سخر | خسر |
| خوسا، سخا | خوسا |
| سکروټه، سروټکه، سکوروټه | سکروټه |
| ورور، رور | ورور |
| وروڼه، روڼه | وروڼه |
| ورورولي، رورولي | ورور ولي |
| وروسته، روسته، روستو | وروسته |
| وروستی، روستی | وروستی |
| سيوری، سوری | سيوری |
| اخلم، اخلې، اخم، اخی، الم،الې | اخلم، اخلې |
| ښنل، ښنه- بخښل، بخښنه | ښنل، ښنه |
| ماسپښين، مازپښين، ماپښين | ماسپښين |
| کوم، کم | کوم |
| اغږل، اخښل، اخل | اغږل |
| نمږۍ، مږۍ، نوږۍ | نمږۍ |

| | |
|---|---|
| زوی، زامن- ځوی، ځامن | زوی، زامن |
| زیړېدل، ځیړېدل | زیړېدل |
| زغستل، ځغستل | زغستل |
| زلمی، ځلمی | زلمی |
| سوځل، سېځل، سوزل، سېزل، | سوځل، سېځل |
| خوځېدل، خوزېدل، | خوځېدل |
| غورځنګ، غورزنګ | غورځنګ |
| زغمل، ځغمل | زغمل |
| ژرنده، زرنده، جرنده | ژرنده |
| ژبه، زبه، جبه | ژبه |
| ژړا، زړا، جړا | ژړا |
| ژوند، زوند، جوند | ژوند |
| ژمی، زمی، جمی | ژمی |
| ژوبل، زوبل، جوبل | ژوبل |
| خېژي، خېزي، خېجي، خېږي | خېژي |
| ژۍ، زۍ، جۍ | ژۍ |
| ژور، زور، جور | ژور |
| نژدې، نږدې، نزدې | نژدې |
| لمر، نمر، نور، مر ، میر | لمر، نمر |
| نمسی، لمسی، نوسی | لمسی، نمسی |
| لمونځ، نمونځ، مونځ | لمونځ |
| لمانځه، نمانځه، مانځه | لمانځه، نمانځه |
| لامده، لانده | لامده، لانده |

| | |
|---|---|
| پسرلی، سپرلی | پسرلی، سپرلی |
| ږغ، غږ، ژغ | ږغ، غږ |
| کنځل، ښکنځل | کنځل، ښکنځل |
| جینۍ، نجلۍ، جلۍ، جیلۍ | جینۍ، نجلۍ |
| لمبر، نمبر | لمبر |
| نولس، نونس | نولس |
| وېره، بېره، اېره | وېره |
| وییده، بیده، اوده | ویده |
| ویاله، بیاله، واله | ویاله |
| اوبدل، اودل، اوبل | اوبدل، اودل |
| نښتل، مښتل | نښتل |
| بزرګان، ملکان، بزرګانان، ملکانان | بزرګان، ملکان |
| وزه، بزه، بیزه | وزه |
| کارغه، قارغه، کارګه | کارغه |
| ڼ، نړ | ڼ |
| کجیر، قجیر | کجیر |
| ټوکه، پړک، چکړې، ټوقه، پړق، چقړې | ټوکه، پړک، چکړې |
| زړهٔ ، زړه | زړه |
| تهٔ، ته | ته |
| زهٔ، زه، ځه | زه |
| لوی، لو | لوی |
| دوی، دوئ | دوی |

| | |
|---|---|
| هغوی، هغوئ | هغوی |
| لویدیز، لویدیځ، لوئیدیز | لوېدیز |
| وویل، اووئیل | وویل |
| یو، ائینده، یوء ، آینده | یو، آینده |
| {ې} | دا توری ( مجهوله یا) باید بې ځایه او د معروفې یا په ځای استعمال نه شي. |

د پښتو ټولنې تر دې درېگونو پرېکړو وروسته دوه نورې ډله ییزه پرېکړې هم شوي، چې یوه د باړه گلی علمي سیمینار پرېکړې دي او بل د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب له خوا د رابلل شوي ورکشاپ پرېکړې دي، چې دلته وړاندې کېږي:

## د-د پښتو د متحد لیکدود او لیکلار لپاره د ((باړه گلی)) د غونډې متفقه پرېکړې:

د پښتو لیکدود په اړه د پښتو ټولنې تر درېیمې پرېکړې (۳۲) کاله وروسته یو ځل بیا د دې شرایط برابر شول، چې د پښتو د یو متحد لیکدود د رامنځته کولو لپاره عملي هلې ځلې وشي. په دې لړ کې د پېښور پوهنتون د پښتو اکیډیمۍ په نوښت د (۱۳٦۹ل کال) یا د ۱۹۹۰ م کال د جولای له (۱۰) تر (۱۲) پورې د سوات په ((باړه گلی)) کې یو درې ورځینی سیمینار جوړ شو، چې په کې د پښتونخوا له گوټ گوټ څخه تقریباً سلو تنو ادیبانو او ژبپوهانو

ګډون کړی و، دې غونډې په خپلې لومړنۍ ناسته کې د کار شل کسیزه کمېټه وټاکله، چې په کې دغه ښاغلي شامل وو:

۱- پروفیسور سید محمدتقویم الحق کاکاخېل، ۲- پروفیسور جهانزېب نیاز، ۳- پروفیسور نصیرالدین، ۴- حبیب الله رفیع، ۵- منتظر بیټنی، ٦- عبدالکریم بریالی، ۷- همېش خلیل، ۸- ډاکتر محمداعظم اعظم، ۹- ډاکتر خالد خان خټک، ۱۰- محمدپروېش شاهین، ۱۱- پروفیسور محمدافضل رضا(اعزازي غړی)، ۱۲- پروفیسور خواجه محمد سائل، ۱۳- نورشاه جهان انور، ۱۴- ډاکتر وردګ (اعزازي غړی) ۱۵- سیال کاکړ، ۱٦- سیداحمد مومند، ۱۷- ډاکتر محمداقبال نسیم خټک، ۱۸- ډاکتر محمداسرار(اعزازي غړی) ۱۹- خیبر اپریدی، ۲۰- پروفیسور یارمحمد مغموم.

د کار د کمېټې غړیو په دربو ناستو کې د پښتو لیکدود ستونزې، کشالې او ګډوډۍ په هر اړخیزه توګه وڅېړلې، پر ټولو یې په سړه سینه غور وکړ او په هره برخه کې تر علمي بحث وروسته یوې نتیجې ته ورسېدل. کمېټې د خپل کار وروستۍ پرېکړې او نتایج په لویه غونډه کې واورول چې د ټولو د تائید وړ وګرځېدل او ملاتړ یې ترې وکړ. د پښتو متحد لیکدود په اړه یې خپلې وروستۍ متفقه پرېکړې داسې صادرې کړې:

(( ۱- هغه کلمې چې د عربۍ او فارسۍ نه پښتو ته راغلې دي او معنا یې هم هغه ساتلې ده، هغه به په خپل اصل شکل کې لیکلی شي، لکه: قصه، قمیس، ضعیف. او هغه کلمات چې پښتو خپل کړي دي معنا یا شکل یې بدل شوی دی، هغه به په پښتو کې په اوښتي شکل لیکل کېږي، لکه: تپوس، پام او د عربۍ مخصوص

ټکي به د پښتو په کلماتو کې نه لیکو، مثلاً: ((تورخم)) به په ((ت)) لیکو په ((ط)) به یې نه لیکو.

۲- ((ڼ)) به د یو توري په شکل کې د پښتو په ا-ب-ت، یعنې حروف تهجي کې د ((ن)) نه وروسته لیکلی شي او نوم به یې ((نوڼ)) وي.

۳- هغه کلمې چې په اخر کې ((زور)) لري هغه ب په (ه) لیکلی شي لکه: خوشحاله (مذکر) خوشحاله (مونث) او دغه (ه) به د تانیث مخصوص علامت نه شي ګڼلی.

۴- ((مد)) په پښتو کې نه شته.

۵- مجهوله ((ے)) چې په قطبي پښتونخوا کې پرته لیکل کېږي، هغه به همداسې پرته لیکلی شي، لکه: سړے و غیره، البته په افغانستان او سویلي پښتونخوا کې به د دوی د خپل لیکدود سره سمه د مخکې په شان لیکلی شي.

٦- مخصوصه (ی) به د کلمې په مینځ کې ((ېـ)) او اخر کې ((ې)) لیکلی شي، لکه سړې اوبۀ، خېر و غیره. مجهوله یعنې پرته ((ے)) به هم د کلمې په مینځ کې د مخصوصې ((ېـ)) غوندې لیکلی شي.

۷- د معروفې ((ي)) لپاره به دوه ځنګ په ځنګ ټکي ((ي)) لیکلی شي، لکه: سړي، زمري او نور.

۸- یای تانیث ((ۍ)) به په اخر کې د کش سره لیکلی شي، لکه: کرسۍ، جینۍ و غیره.

۹- د فعل لپاره به د مخکې غوندې د ((ی)) دپاسه ((ء)) لیکو، لکه: وخورئ، وکړئ و غیره.

۱۰- په ضمير متصل او ((ېئ)) کې به په ((ی)) باندې همزه ليکلی شي او مخصوصه ((ې)) ليکلی شي او يا به ((ی)) او مخصوصه ((ی)) ليکلی شي، لکه په ((يئ)) کې به يوه ((ی)) او په دويمه ((ی)) باندې همزه ليکلی شي.

۱۱- په داسې ((ه)) کې، لکه: زړۀ، ښۀ، پۀ، تۀ د مخکې په شان د ((ه)) دپاسه ((ء)) ليکو، يعنې زړۀ، ښۀ، څۀ کې به د ((ه)) دپاسه ((ء)) وي. په افغانستان او سوېلي پښتونخوا کې به هم دغه رنګ ليکلی شي.

۱۲- ((ګ)) به په کونډ ليکلی شي.

۱۳- کښې، کښېناستل، نخښه، بخښل او داسې نور ټکي به هم دغه رنګ ليکلی شي.

۱۴- معدوله ((واو)) به د ټکو نه نشي غورځولی، لکه: خولۀ، خوارۀ، ګوند، غوندې وغيره.

۱۵- هغه ټکي يا کلمې چې د عربی او فارسی نه د ((پيش)) په حالت کې راغلي دي په ((پيش)) به ليکلی شي يعنې په خپل رنګ کې لکه: ګُل، بُلبل، هغه پښتو کلمې چې پېښ لري هغه به په مجهوله ((واو)) ليکلی شي، لکه: پوښتنه، مور او نور.

۱٦- معروف ((واو)) به د کلمو نه نه غورځول کېږي او دپاسه به پېښ ورکولی شي، لکه: نُور، سُور او نور.

۱۷- د پښتو مخصوص توري څ،ځ،ښ،ږ به همدغسې ليکلی شي.

د کمېټې سفارش دی چې پښتو اکېډيمي دې د مرکزي او صوبايي حکومت په مدد د استادانو او طالب علمانو لپاره يو

رهنما کتاب تیار کړي، چې د دې ټکو په استعمال کې اشتباه ختمه شي. ( د فیصلې په پای کې (۲۰) کسیزې کمېټې د غړو لاسلیکونه کړي دي).

د ۱۳۸۷ل کال د ثور پر ۲۸مه نېټه، د افغانستان د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست له خوا، د درسي نصاب د پښتو او دري کتابونو د واحد لیکدود په اړه درې ورځینی علمي ورکشاپ جوړ شوی و. په دې علمي ورکشاپ کې د لاندې کلمو پر اختلافي یا توپیري بڼو بحث وشو او په دې ډول یوې واحدې نتیجې ته ورسېدل:

## هـ- د پوهنې وزارت د تعلیمي نصاب لپاره منل شوی واحد لیکدود:

| ګڼه | بېلابېلې لیکلې بڼې | | | منل شوې بڼه |
|---|---|---|---|---|
| | لومړی | دویمه | درېیمه | |
| ۱ | اوویشتم | اوه ویشتم | | اوویشتم |
| ۲ | اغزی | ازغی | | اغزی |
| ۳ | ایستلی | ویستلی | | ایستلی |
| ۴ | اواره | هواره | | هواره |
| ۵ | اوسپنه | وسپنه | | اوسپنه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ٦ | اولس | ولس | | ولس |
| ٧ | انځورولاى | انځور كولاى | | انځـــورولا ى |
| ٨ | وولسم | اولسم | | اوولسم |
| ٩ | اولسمشر | ولسمشر | اولس مشر، ولس مشر | ولسمشر |
| ١٠ | پرانيزي | پرانستل | پرانيستل | پرانيستل |
| ١١ | بريښنا | برښنا | | برېښنا |
| ١٢ | برخوال، برخليک | برخمن | برخــــــه من | برخمن |
| ١٣ | باندنيو | باندينيو | | باندنيو |
| ١۴ | بوزي | بوځي | | بوځي |
| ١۵ | بېځايه | بيځايه | بې ځايه | بېځايه |
| ١٦ | بې درنگه | بېدرنگه | | بې درنگه |
| ١٧ | برخه وال | برخوال | | برخوال |
| ١٨ | تېلفون | تليفون | تېليفون | تليفون |
| ١٩ | تشبه | تشبيه | تشبې | تشبيه |
| ٢٠ | تغير | تغيير | | تغيير |
| ٢١ | تعين | تعيين | | تعيين |
| ٢٢ | تللى | تلى | | تللى |
| ٢٣ | تېرونكى | تېرroonكى | | تېروونكى |
| ٢۴ | تمباكو | تماكو | تنباكو | تنباكو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲۵ | پسرلی | سپرلی | | پسرلی |
| ۲٦ | په خپلو | پخپلو | | په خپلو |
| ۲۷ | پنځلس | پینځلس | | پنځلس |
| ۲۸ | په ټولنه کې | په ټولنې کې | | په ټولنه کې |
| ۲۹ | پاتې وو | پاته وو | | پاتې وو |
| ۳۰ | پدغه | په دغه | | په دغه |
| ۳۱ | په درناوې | په درناوي | پدرناوې | په درناوي |
| ۳۲ | پاچایان | پاچاهان | بادشاهان | پاچایان |
| ۳۳ | په واسطه | پواسطه | | په واسطه |
| ۳۴ | پطرول | پټرول | پترول | پترول[1] |
| ۳۵ | پیل | فیل | | فیل |
| ۳٦ | پطلون | پتلون | | پتلون |
| ۳۷ | پل | پول | | پول |
| ۳۸ | په کې | پکې | | پکې[2] |
| ۳۹ | پاسنی | پاسینی | | پاسنی |
| ۴۰ | ښوونکو | ښوونکیو | | ښوونکو |

[1] هغه کلمې چې له لاتیني څخه عربي او له عربي څخه پښتو ته راغلې وي او ط ولري ط په ت بدلیږي او په خپله اصلي بڼه لیکل کیږي.

[2] کله چې ((په)) د سربل بڼه ولري، باید جلا ولیکل شي او که چیرې داسې نه و، نو یو ځای دې ولیکل شي، لکه: (( په کور کې نه شته)) (( اوبه پکې نشته)).

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۴۱ | خوشحال | خوشال(نوم) | | خوشحال (مرکب صفت) خوشال (نوم) |
| ۴۲ | ختيځ(شرق) | ختيز(شرقي) | | ختيځ-ختيز |
| ۴۳ | خپلمنځي | خپلمنځي | | خپلمنځي |
| ۴۴ | ځبېښل | زبېښل | | ځبېښل |
| ۴۵ | ځايداى | ځائيداى | ځاېيداى | ځاېيداى |
| ۴٦ | ځلېريشت | ځلورويشت | ځلرويشت | ځلرويشت |
| ۴۷ | ځښل | ځکل | ځښاک | ځښل-ځښاک |
| ۴۸ | ځېړونکو | ځېړونکيو | | ځېړونکو |
| ۴۹ | چلم | چيلم | | چيلم |
| ۵۰ | چورت | چروت | چُرت | چورت |
| ۵۱ | دوه ځله يې | دوه ځلې يې | | دوه ځله يې |
| ۵۲ | درانه | درانده | | درانه |
| ۵۳ | دوکان | دکان | | دوکان |
| ۵۴ | دعا | دوعا | | دعا |
| ۵۵ | دوولسم | دولسم | | دولسم |
| ۵٦ | دويم | دوهم | | دويم |
| ۵۷ | دريم | درېم | درييم | درېم |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۵۸ | رغاونه | رغونه | | رغاونه |
| ۵۹ | رامينځته | رامنځته | رامنځ ته | رامنځته |
| ٦٠ | رينبتيا | رښتيا | | رينبتيا |
| ٦١ | راکښل | راښکل | | راکښل |
| ٦٢ | زانگو | ځانگو | | زانگو |
| | زنگل | ځانگل | | زنگل |
| ٦٣ | زلمی | ځلمی | | زلمی |
| ٦۴ | زوی | ځوی | | زوی |
| ٦۵ | زنځير | ځنځير | | زنځير |
| ٦٦ | زوز | ځوځ | ځوز | ځوز |
| ٦٧ | ژبدود | ژب دود | | ژبدود |
| ٦٨ | ژباړنه | ژباړه | | ژباړه |
| ٦٩ | راکړ شو | راکړای شو | راکـــړل شوی | راکـړی شـو(د مفـرد لپـاره)، راکـړ شـول( د جمعـې لپـاره) ښـځينه او نرينه توپير يې له مرسـتيال فعل څخه کيږي. |
| ٧٠ | سوزي | سوځي | | سوځي |
| ٧١ | سون | سونگ | | سونگ |
| ٧٢ | سکه | سيکه | | سيکه |
| ٧٣ | ساه | سا | ساء | سا |
| ٧۴ | سهيل | سويل | | سويل |
| ٧۵ | سيمه ايز | سيمه ييز | | سيمه ييز |
| ٧٦ | شوری | شورا | | شورا |
| ٧٧ | شات | شهد | | شات |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۷۸ | شوده | شیده | شـــودې، شېدې | شېدې |
| ۷۹ | طوفان | طوپان | توپان | توپان |
| ۸۰ | طوطي | توتي | | توتي |
| ۸۱ | عاشوری | عاشورا | | عاشورا |
| ۸۲ | غوصه | غصه | غوسه | غوسه |
| ۸۳ | غنچه | غونچه | | غونچه |
| ۸۴ | کیلي | کلي | | کیلي |
| ۸۵ | کبنوت | کبووت | | کبووت |
| ۸٦ | کلتور | کولتور | | کلتور |
| ۸۷ | کندز | کندوز | قندز | کندوز |
| ۸۸ | کندهار | قندهار | | کندهار |
| ۸۹ | کونړ | کنړ | | کونړ |
| ۹۰ | کرنه | کرهنه | | کرنه |
| ۹۱ | کلمه | کلیمه | | کلمه |
| ۹۲ | کومک | کمک | | کومک |
| ۹۳ | کنځل | ښکنځل | | کنځل |
| ۹۴ | کړي دي | کړیدي | | کړي دي |
| ۹۵ | نه لري | نلري | | نه لري |
| ۹٦ | لپاره | له پاره | | لپاره |
| ۹۷ | لیمخی | لمخی | | لیمخی |
| ۹۸ | لیرې | لېرې | لرې | لېرې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۹۹ | لعل | لال | | لال |
| ۱۰۰ | لار | لیار | | لار |
| ۱۰۱ | له پاسه | لپاسه | دپاسه | له پاسه |
| ۱۰۲ | مسوول | مسؤول | مسؤل | مسؤول |
| ۱۰۳ | مونږ | موږ | | موږ |
| ۱۰۴ | مؤلف | مولف | | مؤلف |
| ۱۰۵ | مسئله | مساله | مسله | مساله |
| ۱۰۶ | منځ | مینځ | | منځ |
| ۱۰۷ | معنی | معنا | مانا | مانا |
| ۱۰۸ | ملیون | میلیون | میلون | میلیون |
| ۱۰۹ | نهه ۹ | نه | | نهه ۹ |
| ۱۱ | نحوه | نحو | نحؤ | نحو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۰ | | | | |
| ۱۱۱ | نرینه | نارینه | | نرینه (صفت) نارینه (نوم) |
| ۱۱۲ | نصوار | نسوار | | نسوار |
| ۱۱۳ | نشته | نه شته | نیشته | نشته |
| ۱۱۴ | نژدې | نږدې | نیږدې | نژدې |
| ۱۱۵ | نړیوال | نړۍ وال | | نړیوال |
| ۱۱٦ | نږور | انږور | نږور | نږور |
| ۱۱۷ | نشه | نیشه | | نشه |
| ۱۱۸ | نه شم کولی | نشم کولای | نه شم کولای | نه شم کولای |
| ۱۱۹ | نه کوي | نکوي | | نه کوي |
| ۱۲۰ | نه لري | نلري | | نه لري |
| ۱۲ | واخیست | واخست | | واخیست |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | | | | |
| ۱۲<br>۲ | ورمېږ | اورمېږ | | ورمېږ |
| ۱۲<br>۳ | وربشې | اوربشې | | وربشې |
| ۱۲<br>۴ | وښاياست | وښياست | | وښاياست |
| ۱۲<br>۵ | هندوانه | هيندوانه | هندوانه | هندوانه |
| ۱۲<br>٦ | هنداره | هينداره | | هنداره |
| ۱۲<br>۷ | هديره | اديره | | هديره |
| ۱۲<br>۸ | هستوګنه | استوګنه | | استوګنه |
| ۱۲<br>۹ | يادښت | ياداشت | يـــــاد<br>داشت | يادښــــت( د يـــاد داشـــت پرځـــای) او يادونــه د (تــذکر) پــر ځای کارول کيږي. |
| ۱۳<br>۰ | راغلی و | راغلی وو | راغلی ؤ | راغلی و |
| ۱۳<br>۱ | کېږدي | کيدي | کېږدي | کېږدي |
| ۱۳ | کښينه | کينه | کېنه | کېنه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۲ | | | | |
| ۱۳<br>۳ | ګوره | ګوره | | د (ګ) پرځای<br>(ګ) کره ومنل شو. |
| ۱۳<br>۴ | علماو | علماوو | | علماوو[۱] |
| ۱۳<br>۵ | منځ کوي | منعه کوي | منه کوي | منځ کوي |
| ۱۳<br>۶ | معلومات | مالومات | | معلومات[۲] |
| ۱۳<br>۷ | مازغه | ماغزه | | ماغزه[۳] |
| ۱۳<br>۸ | منځګړی | منځ ګړی | منځـــــه<br>ګړی | منځګړی |
| ۱۳<br>۹ | نجلۍ | جلۍ | جینۍ | نجلۍ[۴] |

(۱) د خپلواک پای (ā،a) وییونو جمع په دوو (واونو) جوړېږي، لکه (a): د جمله وو مخلوقاتو پلار دی دا، (ā پای)، لکه اړتیاوو، علماوو، سپېڅلتیاوو...

(۲) د پښتو کولو ( مغغنولو) په شرطونو کې د التباس یا ټکر نه رامنځته کېدو شرط اړین دی.

(۳) د الف منځو کلمو په مغیره کولو کې منځنی الف له منځه ځي، لکه: مغزو، مېلمنو، پښتنو، درو (درملو) خوړو.

(۴) د کلمو په منځ کې (ی) ګانې د شک او التباس د له منځه وړلو لپاره حتمي دي، له دې پرته د کلمو په منځ کې ښخې حتمي نه دي.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱۴۰ | اوبدل | اودل | اوبل | اوبدل |

که موږ د پښتو ټولنې د سمون بهیر ته نظر وکړو، نو وبه ګورو چې ډېر مثبت بدلون په کې راغلی او رښتیا هم پرځای پرېکړې یې کړي دي، تر لومړۍ پرېکړې یې دویمه غوره او تر دویمې درېیمه هغه غوره ده، د وخت په تېرېدو سره تر درېیمې پرېکړې وروسته څه ناڅه نور سمون هم راغلی دی، وګورئ اکثره پرېکړې یې سمې کارېږي، ډېر کم خلک یې تر پرېکړو دمخه حالت بڼه لیکي.

| تر پرېکړې دمخه حالت | اوسنۍ زياته کارېدونکې بڼه |
|---|---|
| کنځل، ښکنځل | کنځل |
| اوبدل، اودل | اوبدل |
| جینۍ، نجلۍ | جینۍ |
| ږغ، غږ | غږ |
| پسرلی، سپرلی | پسرلی |
| لمر، نمر | لمر |
| لمسی، نمسی | لمسی |
| خېژي | خېږي |
| وروڼه | وروڼه |
| لوېشت، لوېښت | لوېشت او ځینې نورې کلمې. |

پر پورتنیو سمونونو سربېره ځینې نورې کلمې هم شته چې تراوسه یې په لیکنۍ برخه کې څه ستونزې شته. له هغې جملې څخه یوه هم په تورو د اعدادو لیکنه ده، لکه:

دوم/ دوهم/ که دویم

درېم که درېیم

شپاړلسم که شپاړسم او داسې نور...

د عدودونو په برخه کې زه فکر کوم، چې دلته یوه قاعده شته، که هغې ته دقیق شو کېدی شي، ستونزه تر زیاته بریده حل شي، قاعده داده چې:

الف- هغه عددونه چې په پای کې یې واول راغلی وي، لکه: دوه، درې، اویا، اتیا، نوي او نور، دا په پای کې د یم (em) په عددي روستاړي، چې د یوه عدد د پوړۍ څرګندونه کوي، لیکل کېږي، خو زورکی (ə) چې هغه هم واول ګڼل کېږي، که د کوم عدد په پای کې راشي، هغه هم د نورو رتبه یي عددو بڼه خپلوي. نو دلته قاعده دا ده چې خپله عدد + رتبه یي روستاړی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| دوه + یم | (em+dwa) | دویم | (dwaem) |
| درې + یم | (em+dre) | درېیم | (dream) |
| اتیا + یم | (em+ātya) | اتیایم | (ātyāem) |
| نوي + یم | (em+nawi) | نوییم | (nawiem) |
| اویا + یم | (em+āwyā) | اویایم | (āwyāem) |

او داسې نور...

ب- هغه عددونه، چې پر کانسونینټ پای ته رسېدلي وي، د هغوی پوړیزي، حالت په ام (am) روستاړي پای ته رسېږي، لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| خلور + ام | (am+calor) | خلورم | (caloram) |
| شپږ + ام | (am+špaẓ) | شپږم | (špaẓam) |
| لس + ام | (am+las) | لسم | (lasam) |
| یوویشت + ام | (am+yewwišt) | یوویشتم | ( yewwištam) |
| دېرش + ام | (am+derš) | درېشم | (deršam) |
| څلوېښت + ام | (am+cəlwiṣt) | څلوېښتم | (calwiṣtam) |
| پنځوس + ام | (am+panjos) | پنځوسم | (panjosam) |

البته په پښتو- عربي لیکدود کې د رتبه یي عددونو ټول اوازونـه انځورېدلای نه شي. هغه عدودونه چې په زورکي پای ته رسېدلي وي، هغه هم تر همدې قاعدې لاندې راځي یانې په (ام) یې رتبه یي حالت څرګندېږي، لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| پنځه + ام | (am+pinĵə) | پنځم | (pinĵam) |
| اوه + ام | (am+owə) | اووم | (owəam) |
| نهه + ام | (am+nəhə) | نهم | (nəham) |
| شپېته + ام | (am+špetə) | شپېتم | (špetam) |

او داسې نور...

د پورتنیو کلمو ترڅنګ بل هغه ډول کلمې دي، چې پښتـو دي اکثره یې د پښتو ټولنې په پخوانیو پرېکړو کې راغلي او ځینې یې نه دي راغلي، اوس یې هم ځینې خلک په ناسمه بڼه لیکي لکه:

| | |
|---|---|
| ناسم | سم |
| تیکه | تیره |

| | |
|---|---|
| ګیره | ږیره |
| توګل | توږل |
| پختو | پښتو |
| پختونخوا | پښتونخوا |
| پکې | په کې |
| لخوا | له خوا |
| یواځې | یوازې |
| ستونځه | ستونزه |
| دپاره | لپاره |
| کونکی | کوونکی |
| پدې | په دې |
| مخامخ کېږي | مخامخېږي |
| بخښونکی | ښونکی |
| بخښنه | ښنه |
| ، سوله ایز | سوله ییز |
| کښې | کې |
| زمونږ | زموږ |
| کښېږدي | کېږدي |
| کښیني | کېني |
| ځوی | زوی |
| نړۍ وال | نړیوال |
| نشي | نه شي |
| مینځ | منځ |

| | | |
|---|---|---|
| سيمه ايز | سيمه ييز | |
| ثبتونکی | ثبتوونکی | |
| تښتونکی | تښتوونکی | |
| لدې | له دې | او نورې |

**۴- له نورو ژبو څخه پښتو ته راغلې کلمې:**

پر عددونو سربېره نورې داسې ګڼې کلمې هم شته، چې تراوسه يې په ليکلو کې اختلاف شته، له هغې جملې څخه يو هم له نورو ژبو څخه راغلې کلمې دي، په دې ډله کې دا کلمې شاملې دي:

**الف- له انګليسي ژبې څخه راغلې کلمې:** چې اکثره يې نړيوال لغتونه ګڼل کېږي او په همغه مانا او مفهوم دلته هم کارېږي، دا ډول کلمې د ټولو پښتنو ترمنځ يو ډول نه ليکل کېږي، نو ځکه خو په کار ده، چې ليکنې يووالی يې رامنځته شي. د کوزې پښتونخوا پښتانه دا ډول کلمې د انګرېزۍ په دود تلفظوي او کاروي يې، خو په افغانستان کې يې د دې کلمو ليکنی معيار فرانسه يي تلفظ نيولی، چې د افغانستان دري ژبې يې هم همدې ته ورته تلفظوي. د دې کلمو ځينې يې دا دي:

| افغانستان | کوزه پښتونخوا |
|---|---|
| سوسياليزم | سوشليزم |
| انترناسيوناليزم | انټرنشنليزم |
| ديموکرات | ډيموکراټ |
| ديموکراسي | ډيموکراسي |

| | |
|---|---|
| استوکراسي | ارسټوکراسي |
| بروکراسي | بيروکراسي |

د خاصو نومونو په کارونه کې هم توپيرونه شته.

لکه:

| | | |
|---|---|---|
| ايټاليا | ايټلي | |
| اسيا | ايشيا | |
| ماليزيا | مليشيا | |
| اندونيزيا | اندونيشيا | |
| هند | انډيا | |
| چيچنيا | چيچن | |
| اروپا | يورپ | او داسې نور... |

په دې برخه کې يوه قاعده دا ده، چې هرې ژبې ته چې د بلې ژبې کومه کلمه راځي، نو دا ژبه پرې د خپل فونولوژيک جوړښت عمليه تطبيقوي او هغه کلمه تر هغه حده صقيلوي، چې د خپلې ژبې د محاورې مسير ته يې برابره کړي. دا بهير تر هغه حده جواز لري چې د کلمې مانا بدله نه شي. نو د پورتنيو کلمو افغاني شکل ته که ترجيح ورکړای شي بده ځکه نه برېښي، چې د کلمې اصلي مانا نه بدلېږي يوازې په تلفظ کې يې څه ناڅه بدلون راځي، چې دا هم يو ډول اسانتيا رامنځته کوي.

ب- له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلې کلمې: يو هغه ډول کلمې دي، چې له عربي ژبې څخه پښتو ته راغلي، پښتو پرې خپل قانون تطبيق کړی او ډېر زيات فونولوژيک تغييرات يې په کې راوستي، د دې ډول کلمو په ليکنې برخه کې هم کېدی شي، همدې پښتو بڼې ته يې ترجيح ورکړای شي، لکه:

| | |
|---|---|
| خلق | خلک |
| قميص | کميس |
| تفحص | تپوس |
| حق+ له | هکله |
| معنی | مانا |
| يعنې | يانې |
| معنوي | مانيز |

او داسې نور...

بل هغه ډول عربي کلمې دي، چې مذهبي ارزښت او مفهوم لري، په هغو کې تغيير او تبديل راوستل نه يوازې د کلمې بڼه بدلوي، بلکې مانا يې هم تغييروي او مذهبي ارزښت او مانا يې له منځه ځي، په کار دي چې دا ډول کلمې په خپله اصلي بڼه وليکل شي لکه:

ايمان، حج، زکات، فرض، سنت، واجب، دعا، نيت، الله، اکبر، مذهب، دين، استنجا، صدقه، قرباني، خيرات، مسحه، ايات، حديث، وعده، جبر، غفار، اختيار، خير، اذان، سجده، رکوع،

نکاح، طلاق، عاق، امام، قبله، کعبه، رسول، نبی، قرآن او داسې نور[1]. په داسې حال کې چې یو شمېر عربي کلمې باید د مذهبي مانا او تقدس له مخې په همغه عربي بڼه ولیکل شي، ځینې نورې کلمې چې سوچه پښتو دي او پښتو ریښه لري، خو د زمانې کاتبانو هغه په شعوري او ناشعوري ډول د عربي او دري ژبې د قاعدې تابع کړي او یا د عربي خاص توري یې په کې ورګډ کړي دي، هغه هم باید په خپله هماغه پښتو بڼه ولیکل شي. قاعده دا ده، چې لس عربي توري (ث، ذ، ح، ص، ض، ط، ظ، ع، ف، ق) چې په کومه کلمه کې راځي، دا کلمې طبعاً عربي دي او دا قطعاً په هغو کلمو کې نه شي راتللای چې پښتو ریښه لري.

| سمه پښتو بڼه | ناسمه بڼه | |
|---|---|---|
| ساپی | صافی | |
| اپریدی | افریدی | |
| خوشال | خوشحال | |
| اینګار | علینګار | |
| ایشنګ | علیشنګ | او ګڼ شمېر نور |

(ع) په هغو کلمو کې راتلای شي، چې عربي وي، قطعاً په هغه کلمه کې چې (ګ) په کې وي، (ع) او دا نهه نور توري نه شي راتلای، نو ځکه د (ا) پر ځای په (ع) د اینګار لیکل تېروتنه ده، دا قاعده له (افغانستان) پرته چې (ف) په کې راځي او هغه هم

(۱ ) پښتو ګړښود، محمدسرور وکیلي، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز، پېښور، ۱۳۸۷ ل کال، د مخ.

اصلاً د اوږدو تعاملاتو نتیجه ده د (افغان) کلمې اوسنۍ بڼې تر ډېرو پراوونو وروسته دا حالت غوره کړی، نور نو په پښتو کلمو کې دا توري نه شي راتللای، نو ځکه باید پښتو کلمې په خپله پښتو بڼه ولیکل شي.

# پنځم څپرکی

## په پښتو کې د سربلونو او اوستر بلونو سم استعمال

په پښتو ليکنۍ برخه کې يوه ستونزه همدا دسربلونو او اوستربلونو ناسمه کارونه ده. سره له دې چې د ليکدودو له مخې، سربلونه او اوستربلونه لکه څنګه چې دي همغسې ليکل کېږي، خو د کارونې سم ځايونه يې له ځينو کسانو څخه غلطېږي او يو د بل پر ځای يې کاروي. کله چې هر سربل له خپل اوستربل سره را نه شي او يا هم د يوه سربل پر ځای بل هغه راشي، نو د جملې مانا بدلوي او هغه مقصوده مانا چې بايد ور يې کړي، نه ورکوي. مخکې تر دې چې د سربلونو او اوستربلونو پر شننه پيل وکړو ښه به وي چې نومونږي مورفيمونه تعريف کړو.

**سربلونه او اوستربلونه:** هغه نه ګردانېدوونکي مقيد مورفيمونه دي، چې په خپلواکه توګه کومه مانا نه ښندي، بلکې له خپلواکو نامقيدو مورفيمونو سره يو ځای يوه مانا او مفهوم رسوي.

**الف- سربلونه(پيشيني) Prepositions:**

هغه ادات دي، چې تر يو نوم دمخه راځي او په جمله کې د هغه حالت او دريځ څرګندوي .

**ب- اوستربلونه ( پسيني) Post Positions:**

**هغه وييکي دي، چې په يوه جمله يا فقره کې تر يوه نوم وروسته راځي.**[1] **پوهاند دوکتور مجاور احمد زيار د د سربلونو او اوستر بلونو په اړه وايي:**

**((سربلونه Prepositions او اوستر بلونه Post Positions هغه کوشني ناخپلواک او نااوړېدوني ډېرپېښي (کثير الوقوع) او ډېر کارنده ژبني توکونه يا وييکي Paraticles دي، چې په يوه جمله کې يې د خپلواکو توکونو يا نومونو (صفتونو، ضميرونو او شمېر نومونو) په ملتيا مانا او دنده ځرګندېږي، سره له دې چې سربلونه او اوستربلونه د جملې يا په بله وينا، په ناخپلواکو او مرستيالو توکونو کې راځي او مانا او پازه يې د همدغو نومونو يا کړونو او کړولونو په ګاونډيتوب کې ځرګندېدی شي، خو دا چې پر دغو آرو يا خپلواکو يو ډول اغېز لري او د هغوی دريځونه اوپېرونه (حالتونه) ځرګندوي، نو اداره کوونکي، چلوونکي يا واکمن توکونه هم بلل کېږي.))** [2]

**سربلونه او اوستر بلونه که نا سم وکارول شي د جملې مانا ته بدلون ورکوي او نحوي جوړښت يې بدلېږي، دلته به يې څو بېلګې وړاندې کړو. دا ډول تېروتنې ډېرې کېږي، وګورئ دا مثالونه چې د (له) پر ځای يې (د) کارولی دی.**

---

(۱) پښتو غړپوهنه او وييپوهنه، پوهنوال محمد صابر خوېشکی، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، ۱۳۸۰ ل کال، ۲۵ مخ.

(۲) پښتو پښويه، پوهاند دوکتور مجارو احمد زيار، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۸۲ ل کال، ۱۳۰ مخ.

**يو ناظم ويلي: تل به دې ساتم (د) پردو وطنه!**

**د ناظم اصلي هدف دلته دا دی، چې خپل وطن (له) پردو څخه وساتي، خو څرنګه چې ده په ناشعوري توګه د (له) پر ځای (د) کارولی نو دلته دا مسره داسې مانا ورکوي، چې ناظم (د پردو وطن ساتي نه خپل، او دا هغه مانا ده، چې شاعر يا ناظم اصلاً نه ده غوښتې، خو د (د) د ناسمې کارونې له امله د شاعر د زړه مانا معکوسه شوې ده.**

**يا دا بله بېلګه:**

**ته خو به (د) زلفو کوڅې جوړې کړې – زه به دې شلېدلي ګرېوان څه وکړم (خاطر)**

**دلته هم په ناشعوري ډول د (له) پر ځای (د) راوړل شوی ، د شاعر هدف دا دی چې (له زلفو) کوڅې جوړې شي، نه (د زلفو کوڅې)، خو څرنګه چې شاعر (د) سم نه دی کارولی، نو ځکه خو دا بيت هغه مانا اصلاً نه ورکوي، چې شاعر په زړه کې جوړه کړې وه. دا ډول تېروتنې په ادبي متونو کې دومره زيان نه پېښوي، خو په حقوقي ، جزايي او سياسي متونو کې دا ډول ګرامري تېروتنې د شخص او ټولنې سياسي ژوند بربادولای شي.**

**په (په) او (پر) کې هم دا ډول تېروتنې کېږي، (په) اصلاً دفاعلي حالت لپاره راځي، په يوه جمله کې چې شخص يو فاعل وي يا فاعلي حالت ولري او (پر) د مفعولي حالت لپاره دی.**

( زه په احمد سياسي كار كوم.) مانـا دا چـې احمـد مـې د سياسي كار لپاره د يوې وسيلې يا فاعل په توګه ګومارلی، احمـد خپله اجرا كوونكی دی، خو دا بله جمله چې:

(زه پر احمد سياســي كـار كـوم.) دا مانـا وركـوي، چـې زه غواړم احمد دسياسي كار له لارې تشويق كړم، چې له ما سره په سياسي مبارزه كې راګډ شي، يانې دلته احمد كوم كـار نـه اجـرا كوي، بلكې كار پرې اجرا كيږي.

( زه ځم چې په ډاكټر غاښ وباسم.) يانې دا چې زما غـاښ رنځور دی او ډاكټر ته ځم چـې غـاښ مـې وكـاږي. خـو دا بلـه جمله: (زه ځم چې پر ډاكټر غـاښ وباسـم.) دا مانـا وركـوي چې زه د ډاكټر غاښ وباسم. يانې دا چې د (پـه) او (پـر) ناسـم استعمال د جملې مانا سرچپه كوي.

زموږ په كندهاری لهجه كې د (پر) او (په) كارونه ډېره دقيقه ده، خو په ختيزې او مركزي لهجې كې دا كارونه دقيقه نه وي، نو كه څوک غواړي (په) او (پر) دقيق استعمال كړي، د كندهاری لهجـې معيارونه ورته ډېره ګټه رسولای شي.

دغسې د نورو سربلونو او اوستربلونو كارونه هم در واخلـه. دلتـه به موږ هر سربل دهغه له خپل اوستربل سره لږ په تفصيل وڅېړو.

۱) په : چې له (كې) اوستربل سره اړوند نـوم، تـون يـا ظرفـي حالت څرګندوي، لكه: په (ټولګي كې) له (پـورې) اوسـتربل سـره بل ډول تونيږ، يا په بله وينا، يو تړاو او پيوسـتون ښيـي، لكـه: پـه ځان پورې، په تا پورې، ستا په خبرې پورې ( به ارتباط ګپ شـما)

له " سره" اوستربل سره يو لوښنپېر(الي حالت) راښيي، لکه: په بياتي سره، په چړې سره، په وينا سره، په زور سره، په خوښۍ سره.
له "پسې" او ستربل سره يو بل راز توننپېر يا پرله پسېوالی څرګندوي، لکه په تاپسې، په سختۍ پسې اساني راځي، په ژمي پسې پسرلی دی، کله کله ترې "سره" اوستربل لوېدی هم شي، لکه: په چاړه، په خوښه که په زور وي، له مظلوم به د ظالم لاس لنډېږي. په تا اړه نه لري ( په تا پورې اړه نه لري). په ليکاني ليک کېږي (په ليکاني سره ليک کيږي). مګر( په کور) له ( په کور کې) سره يو راز نه دی. ځکه ( په کور) له آره (پر کور) دی چې ظرفي نه، بلکې استعلايي مانا ښندي. همدا راز په وخت، په کال، په مازيګر، په بجو ... د پر وخت ، پر کال، پر مازيګر، پر بجو... ناسم، يا نا کره بڼې دي. همدا خبره ده چې موږ ( په پښتو ليکل) او ( پر پښتو ليکل) سره تو پيروو.

۲) پر : يو باندينی( استعلايي) سربل دی، چې يو اړوند اوستربل" باندې" يې زياتره غورځېږي، لکه: پر مېز باندې يا پر مېز، پر ځمکه باندې يا پر ځمکه، پر زړه باندې يا پر زړه، پر سر باندې يا پر سر، پر زړه يوه څه (او) پر خوله بل څه، پر وخت، پر کور، پر کابل، پر ورځ، پر شپه، پر ماښام، پر لسو بجو، پر ۱۳۵٦ ل کال او داسې نور . " پر مياشت" دومره نه ويل کېږي، بلکې " په مياشت" کې زياتره کره برېښي.

"پر" هم د "په" غوندې زور پای نومونه زياتره پر اوښتي پېر نه اړوي. له کندهاری او تاريخي ادبي پښتو پرته نور زياتره

ګړدودونه "په" او "پر" سره ګډوي او پر یوه وخت دواړه په الي، ارتباطي، استعلايي او پر له پسې (تسلسلي) مانا کاروي. خو په یوه کره لیکنۍ پښتو کې د دغو دواړو سربلونو توپیر اړین دی. یو ژبنی آر هم دا دی، چې دوه توکونه یا دودونه په تاریخي او اېتمولوجیک ډول هېڅکله هممانیز او همپازیز نه وي. د همدغه آر په ترڅ کې سپمايي آر هم سمبالېږي. که په ګړنۍ ژبه کې دغه آرونه دومره پر ځای هم نه شي، مګر په لیکنۍ ژبه کې څو اړخیز ګټور نقش لري.

توپیر یا نه ګډون، چار وېش او سپما د نړۍ د هرې ژبې بنسټ جوړوي، په دې توګه په کار دي (په پښتو لیکل) داسې مانا کړو چې یو څه په پښتو ژبه لیکل کېږي، نه په بله ژبه. ( پر پښتو لیکل) دا مانا چې د پښتو په اړه کې څه لیکل کېږي، نه د بلې ژبې یا بلې سکالو په اړه. همدارنګه (پر کابل اوسېږم) دا مانا چې د کابل ښار په شاوخوا کې اوسېږم او ( په کابل کې اوسېږم) دا چې دننه په کابل یا کابل ښار کې اوسم.

په پارسۍ کې هم د"به" او "بر" توپیر په زاړه ادب او اوسني ایراني ادب او لیکنه کې پوره څرګند دی. همداسې یې په هندي کې هم در واخله. د "پر" بل اوستربل "سربېره" دی چې ناسم ډول یې "برسېره" هم لرو ډېر دود لري. دغه اوستربل هېڅکله نه غورځول کېږي، که نه مانا یې له " باندې" سره ګډېږي او سره یو کېږي.

"پر" چې د وییکنومځري (آداتي ضمیر) "پرې" پر ځای هم کارېږي او په کندهاري ګړدود اړه لري، هم د یادو شویو ژبنیو

آرونو له مخې په تولیزه لیکنۍ پښتو کې د منـنې وړ نـه برېښـي. همداسې "تر" او "په" هم در واخله چې "ترې" او "پـې" یـا "پـرې" سره ګډول یې ګډوډي پېښوي.

۳) د : یو ډېر پېښې تولي(اضافي یا ملکي) سربل دی، چـې لـه "کره" او "غوندې" پرته نور ساده او آر اوستربلونه نـه لـري، بلکـې بې شمېره بدل، درغلي (کاذب) یا په بله وینـا بېلښتـي، تـرښتي او غوندېز ( فقره یي یا عبـارتي اوسـتربلونه ورسـره غـاړه کېـږي. لـه مهالنومونو سره بې له اوستربلونو کرولونه جوړوي، لکه: د شپې، د ورځې، د غرمې... خو تـر ټولـو زیاتـه او بنسـټیزه پـازه یـې د دوو نومونو تر منځ د تول ( اضافت) اړیکي ټینګونه ده.

۴) تر : چې د "پر" بډ (مقابل) سربل دی، هغه دا چې " تر" ترهـر څه له مخه د " پر" غوندې د "بانـدې" نـه، چـې د "لانـدې" مانـا ښندي، له دې کبله یې لومړی اوستربل"لاندې" دی چې، هېڅکله غورځېدنه، نه مني، لکه: ( تر مېز لاندې) چې "تر مېز" بیا ګرد سـره بله مانا ښنـدي او هغـه تـوني او مهـالي پیوسـتون دی، لکـه: تـر ننګرهاره، تر مازیګره چې اوستربل "پورې" یـې هرومـرو ملتیـا نـه کوي. دریېم اوستربل یې "وروسته" یـا " را وروسـته" کـرول دی، لکه: تر غرمې وروسته یا تر غرمې را وروسته، تـر ځلمـي را وروسـته زما وار دی... له څلورم اوستربل څخه (ځنې- نه) سره پرتلیز جاج نه ښندي، لکه: تر تا څخـه زه ښـه یم، چـې د دغـه اوسـتربل پـه غورځېدو، "ترتا" هم سم راځي. د دې پر ځای چې د نورو ژبو پـه پېښو( سرنی کال د پروسږکال په نسبت ډېـر ورنـدی دی)، ووایـو:

(سړني کال تر پروسږکال ډېر ورندی دی) لنډ او کره راځي. "تـر" پر دغه پرتليز(نسبي يا تدريجي) مانا له "له" سـربل سـره هممـانيزه کېږي. خو دا چې (له- څخه) تر هر څه له مخه وتون پېر (منشايي) حالت څرګندوي، نو يې بيا هم له (تر – څخه) سره ګډول په کـار نه دي، يا لږ تر لږه بېځايـه دي، لکـه: ننګرهاريـان چـې وايـي: د کوره په سارا خوښ يم – د وېشه په تالا. خو دا چې په ګـډه کـره ليکنۍ پښتو کې دلته د پرتلې مانا موخه (مطلوب) ده. نو (تر کـوره پر سارا خوښ يم – تر وېشه پر تالا) ترې سم برېښي.

دغه راز په شمال ختيزو ګړدودو کې د (په) ، (تر)، (لـه) پـر ځـای هم زياتره (د) کارېږي چې دا هم له ژبني آر معيار څخه چپ بلل کېږي، لکه: د ځلمـي پسـې، د ننګرهـار پـورې، د مېـز لانـدې، د ننګرهار نه، د ځلمي سره د کندهاره راغلم، د پښتو ټولنې د لغـاتو د څانګې د خوا. ځلمي سره، تا نه يا ستا نه ... کره ډول يې : پـه ځلمي پسې، تر ننګرهـارپورې، تـر مېـز لانـدې، لـه ننګرهـاره، لـه ځلمي سره له کندهاره راغلم ، د پښتو ټولنې د لغاتو د څانګې له خوا، تر تا (څخه) زه ښه يم...

۵) له : چې له (څخه، نه يـا ځـنې) اوسـتربل سـره لـه آره د يـو نوم(وتون پېر) يا منشايي حالت څرګندوي،لکه: لـه سيسـتانه يـا لـه سيستان څخه، يا له سيستان نه او يا لـه سيسـتان ځـنې. پـه دويمـه "نسبتي" مانا يې کارول دومره کره نه برېښي، لکه: پاس چـې ورتـه ګوته ونيول شوه.

"له" له دويم اوستربل "سره" د ملګرتيا (معيت) جاج ښندي، لکـه: له ځلمي سره تر هرات پورې ملګری وم او داسې نور. په دغه مانا يې اوستربل ( سره) پر ( څخه يا څه) اړول لـه ګـډې کـره ليکنـې پښتو څخه چپ برېښي، که څه هم په ځينو ګړدودو او د خوشال په وينا کې "څخه" د "سره" پر ځای هم ډېر کارول کېږي. په هـره توګه بايد ( له ځلمي سره) او له ( ځلمي څخه) په يـوه مانـا ونـه کارول شي. د " سره" اوسـتربل غبرګـون ( تکـرار) د سـره لـه " تـر څنګه" د " باوجود" مانا ښندي، لکه: " سره لـه" ناروغـې لمبـا تـه ولاړم. يا: " له ناروغې" " سره سره" لمبا ته ولاړم " سره له" د ترېښتي سربل په توګه له "څخه" او ستربل سره غاړه کېږي او پيل ښووند کړول را منځته کوي،لکه سر له ننه، سر له مابنامه. توني، لکه سر له همدې څېرکي... دريېم اوستربل يې " وروسته" دی چې مهالي او توني کړول (قيد) ورسره جوړوي او له (تر) سره يې پازه يو کېـږي، لکه: له غرمې وروسته کور ته ځم چې البته ( تر غرمې وروسته) ترې زيات کره برېښي، په بله وينا (وروسـته) د "لـه" نـه ، بلکـې د " تـر" معياري اوستربل دی.

څلورم اوستربل يې " راهيسې" دی چې يو مهالنی کړول ورسـره جوړوي، لکه: له پروسږ کال راهيسې، لـه ډېـرو کلـو راهيسـې، لـه پخوا راهيسې... په دې توګه " راهيسې" د يوه اوستربل په توګـه بايد په (نوم يا نومغوند) پورې سـيده ونښلـول شـي او بـل کـوم زياتي او ستربل يا بل ژبنی توک ترې له مخه نه شي، په بلـه وينـا: (له ډېرو کلو را په دې خوا) يې هممانيز اندول دی، خو د پارسې (از سالها به اينطرف) ټکي پر ټکـي اړونـه ده او دومـره روانـي او

لنډون هم نه لري. د "له" پنځم اوستربل " پرته" دی چې د "سره" بډ او مقابل جاج ښندي، دا مانا چې د اړونـد نـو م ملګرتیـا نـه، چې ښېلتيا او نشتوالی څرګندوي، لکه: له بللو پر تـه نـا بللـي هـم راغلي وو.

٦) "بـې" : چـې زيـاتره د "نـا" غونـدې يـو سـتاينوميز(صـفتي) مختاړی دی، لکه: بې کوره، خو لږ و ډېـره سـربلي ځانګړتيـا هـم لري او هغه زيـاتره د " لـه" پـه ملګرتيـا او د يـوازيني او سـتربل (څخه، نه يا ځنې) په درلودلو، لکه بې لـه تـا څخـه، بـې لـه هغـه څخه، چې (بې له تا) او ( بې له هغه) هم ويـل کېـږي. د منځنـي پېر په شعر کې يې "بېتا" د رديف په توګه هم کارول شوی دی.

٧) " و" : يو پخوانی سربل دی چې لـه "تـه" اوسـتربل سـره د ورتلـونېېر (مفعـولي حالـت) څرګنـدوي. پخـوانی څـرک يـې پـه لويديزو (کندهاري) ګړدودو کې پاتې دی او نورو ټولو ګړدودو لـه لاسه ورکړی او د هغه اوستربل "ته" يوستوی کاروي، لکـه: (و) تـا ته وايم، (و) ښوونځي ته ځم...

د منځنۍ دورې شاعرانو هم ډېر کارولی دی او لا کله يـې دويم ځلي تر نوم وروسته هم راوړي او له اوستربل"ته" سره يې بيا هـم پتليز(جوخت) نښلولی، لکه رحمان بابا چې وايي:

خدای وما وته ښکاره کړ هغه لمر بيا.

ځينو بيا د پارسۍ د "به" غوندې بې اوستربله هـم کـارولی دی، لکه پير محمد کاکړ چې ويلي دي:

سوز ګداز د محبت وهسې مارا.

په هره توګه د ویونکو د ډېرښت پـه لاسـوند تـر (و ـ تـه)، (تـه) زیات معیاري ارزښت لري.

۸) " لکه" : لکه "د" په برخه کې چې ورتـه نغوتـه وشـوه، پـر دې سربېره چې لـه دغـه تـولي سـربل سـره ډېـر درغلـي اوسـتربلونه رامنځته کوي، د یووستوي سربل په توګه هم له ځانه سـره یـو لـړ بېلابېل ساده وییکي، لکه : غوندې، هومره، هسې... ملګري کوي: (لکه) زمري (غوندې)، (لکه) غر (هومره)، (لکه) ګل (هسې)...(۱)

دلته به د پښتو سربلونو او اوستربلونو دواړو لنډیز راوړو:

| سربل | اوستربل | مثال |
|---|---|---|
| په | کې | زه په کوټه کې یم. |
| په | سره | په زیار او زحمت سره بری حاصلېږي. |
| په | پورې | په چا پورې نه خاندم. |
| په | پسې | په تا پسې نه ځم. |
| پر | باندې | زه پر څوکۍ باندې ناست یم. |
| پر | سربېره | پر دې کار سربېره نور کارونه هم لرم. |
| د | لپاره | د خبرو لپاره وخت نه لرم. |
| د | غوندې | د مزدور غوندې یې وګڼه. |
| د | کره | د احمد کره نه ځم. |
| تر | لاندې | ترمېز لاندې پروت دی. |

---

۱ - پښتو پښویه، پوهاند دوکتور مجارو احمد زیار، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۲ ل کال، ۱۳۲- ۱۳٦پورې مخونه .

| | | |
|---|---|---|
| تر | پورې | تر ښوونځي پورې ځم. |
| تر | وروسته | تر غرمې وروسته راځم. |
| تر | څخه | تر ځوزه (څخه) ګل ښه دی. |
| تر | دباندې | تر کوره باندې ووځه. |
| تر | پرته | تر ځلمي پرته ښه سړی نه شته. |
| له | سره | له ځلمي سره ځم. |
| له | څخه(نه) | له احمد څخه(نه) مې کتاب واخیست. |
| له | وروسته | له غرمې وروسته کور ته ځم. |
| له | راهیسې | له پرون را هیسې کار لرم. |
| له | پرته | له احمد پرته محمود هم راغلی و. |
| بې | څخه | بې اوبو څخه ژوند نه کېږي. |
| و | ته | و تا ته مې ووې. [1] |

(۱) پښتو غږپوهنه او ویېپوهنه، پوهنوال محمد صابر خوېشکی، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، ۱۳۸۰ ل کال، ۲۵ او ۲٦ مخونه.

# شپږم څپرکی

## په پښتو کې د لیکنښو سمه کارونه او اړتیا

لیکنښې که څه هم خاصې مانا واله کلمې نه دي، خو داسې نښې نښانې دي، چې د یوه متن د عبارت او فقرې په سمه لوستنه رسمونه او د مانا په سم لېږد کې مرسته کولای شي. که لیکنښې نه وي یو متن کېدی شي په سختۍ ولوستل شي او هغه مانا ورڅخه وا نه خیستل شي چې د لیکوال ورڅخه مقصد او هدف وي. لیکنښې د نړۍ په اکثرو ژبو کې تقریباً سره ورته دي، هغه ژبې چې عربي لیکدود تعقیبوي، طبعاً لیکنښې یې یو ډول دي، خو په انګلیسي، روسي او نورو ژبو کې چې لیکدود یې له پښتو لیکدود سره توپیر لري، ځینې لیکنښې یې د هغو معکوسه بڼه خپلوي، خو په دې ژبو کې هم اکثره لیکنښې همدې ته ورته دي.

لیکنښې د انشاء د سمون لپاره ضروري دي، یو ښه انشایي متن همغه دی، چې لیکنښې په کې په دقت سره مراعت شوې وي. موږ به دلته په پښتو کې د کارېدونکو لیکنښو او د هغو د کارونې ځایونو ته نغوته وکړو:

## ۱- لمن لیک ( حاشیه):

کوم وخت چې له یوه اثر څخه عبارت یا مفکوره رانقل کېږي، باید په لمنلیک کې د لیکوال، د کتاب د خپرووونکې موسسې ، د چاپ نېټې او د کتاب صفحې ته په ترتیب سره اشاره وشي، لکه دا لاندې مثال:

ګل پاچا الفت، لوړ خیالونه او ژور فکرونه، پښتو ټولنه، ۱۳۳۵، ۲۹ مخ.

که چېرې کتاب په ببیلو ګرافۍ کې معرفي کېږي، تر اصلي نوم تخلص مخکې راوړل کېږي لکه:

الفت، ګل پاچا، لوړ خیالونه او ژورو فکرونه، پښتو ټولنه، ۱۳۳۵، ۲۹ مخ.

کله کله د کتاب د چاپ ځای او نېټه په لیندیو کې نیول کېږي، لکه:

ګل پاچا الفت، لوړ خیالونه او ژور فکرونه (کابل: پښتو ټولنه، ۱۳۳۵) ۲۹ مخ.

که چېرې څېړونکی غواړي له یوې مجلې څخه عبارات راواخلي، نو دمقالې نوم د نقل د نښو تر منځ لیکي. ورپسې د مجلې نوم، د چاپ ځای او نېټې او مخونو ته اشاره کوي، لکه:

محمد صدیق روهي، " فولکور څېړنې میتودولوجي" د فولکور او ادب ټولنه، ۱۳۵۲، لومړی ګڼه، لومړی کال، ۸ مخ.

## ۲- شمېرنه:

که چېرې شمېرنه په یوه کرښه کې راځي باید د لیندیو په منځ کې ونیول شي، لکه:

د څېړنې درې مهم ګامونه دادي: (۱) فرضیه، (۲) د موادو را غونډونه، (۳) نتیجه. که چېرې عددونه په نوې کرښه کې راځي، په لاندې توګه لیکل کېږي:

۱- یا په دې ډول: ۱)

## ۳- شارحه(:):

دا نښه د یوه لغت یا فقرې د شرح کولو لپاره استعمالېږي. کله چې لوستونکی دا نښه ویني هغه ته دا توقع پیدا کېږي، چې راتلونکی عبارت به له وعدې سره سم پر مطلب باندې نوره رڼا هم اچوي او یا به نور څه وړباندې زیات کړي. دا لاندې نمونې وګورئ:

د انسان د ژوند هدف څرګند دی: سعادت.

د سیاستمدار لپاره دا خواص ډېر دي: درې درجې جرئت او یوه درجه پوهه.

له خلکو نه په زور احترام مه غواړئ، بلکې خپل ځانونه د احترام وړ وګرځوئ: خلک هغه چا ته احترام کوي چې هغه له نورو توقع نه کوي.

۴- لیندۍ ( ) :

کله چې د یوې جملې په منځ کې معترضه جمله راشي، د لیندیو تر منځ نیول کېږي. که څه هم معترضه جمله د دوو سر چپه واوونو تر منځ هم نیول کېدی شي، مګر لیندۍ په هغه صورت کې راځي، چې معترضه فقره له اصلي جملې سره ډېر توپیر ولري.

په عمومي ډول لیندۍ په دې لاندې ځایونو کې استعمالېږي:

۱- کله چې معترضه فقره د اصلي جملې په منځ کې راشي، لکه دا لاندې نمونې:

زه به سبا (که خدای کول) خوست ته ځم.

د خوشال خان دستارنامه د پلوتارک او کوینتلیان ( چې دوی دواړه د ښوونې او روزنې په برخه کې ډېرې مهمې نظریې لري) له اثارو سره د مقایسې وړ ده.

۲- هغه رقمونه او ابجد توري چې د وېش د ښودلو لپاره راځي د لیندیو تر منځ نیول کېږي، لکه:

د اسلام پنځه بناوې دا دي: (۱) کلمه، (۲) لمونځ، (۳) روژه، (۴) زکواة، (۵) حج.

۳- په قانوني او تجارتي پاڼو کې د پيسو مقدار لوړې په تورو او ورپسې د لينديو تر منځ په رقمونو ليکل کېږي، لکه:

د دې ترون له مخې به د نوموړي کور مياشتنۍ کرايه يو زر او دوه سوه پنځه ويشت(۱۲۲۵) افغانۍ وي.

۴- پوښتننښې يا د ندا علامې چې د شک يا طنز او کترې په توګه استعمالېږي بايد د لينديو تر منځ وليکل شي، لکه:

په ازاده نړۍ (؟)کې ازاد مطبوعات (!) د محرومې طبقې په ګټه (؟)کار کوي.

## ۵- وير ګول(⁄):

وير ګول لفظ د لاتيني له ( ويرګوله) څخه اخيستل شوی دی، چې په اصل کې واړه ميل يا سيخ ته ويل کېږي. د وير ګول نښه چې دلته د دوو لينديو تر منځ ښودل کېږي (⁄) په انګليسي کې د (بار) په نامه هم يادېږي. زموږ زيات شمېر ليکوال سرچپه واو (،) ته ويرګول وايي، مګر د انګليسي قاموسونه او د ليکوالۍ په اړه کتابونه وير ګول او سرچپه واو(کامه) دوی بېلې نښې ګڼي.

۱- معمولاً د (او / يا ) تر منځ د ويرګول نښه ايښودل کېږي، که موږ دا لاندې جملې ولولو:

(هلکان او / يا نجونې د واليبال ننداره کوي) مانا دا ده چې هلکان او نجونې، يا هلکان يا نجونې د واليبال ننداره کوي.

۲-  ويرګول د نېټې  د ليکلو لپاره هم استعمالېږي. مثلاً د دې پر ځای چې د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ شپږويشتمه نېټه وليکو، کولای شو د اسانتيا لپاره ويرګول استعمال کړو او داسې يې وليکو: ۲٦/۴/۱۳۵۲

۳- کله کله د يوه بيت  د مسريو تر منځ فاصله نه پرېښودل کېږي پر ځای يې د وير ګول نښه استعمالوي، لکه د خوشال خان خټک دا بيت:

درست پښتون له کندهاره تر اټکه/ سره يو د ننګ په کار پټ او اشکار

## ٦- کامه (سرچپه واو) (،):

په اکثرو لوېديزو هېوادونو کې کامه د (و) په بڼه ليکل کېږي مګر په پښتو او دري کې د دې لپاره چې (واو) ونه لوستل شي سرچپه يې ليکي، د تنقيط په نښو کې کامه ډېره زياته استعمالېږي او په مختلفو ځايونو کې ترې کال اخيستل کېږي:

۱- د بېلولو لپاره:

الف) اوږدې جملې چې له څو ساده جملو څخه جوړې شوې وي د کامې په واسطه بېلېږي، لکه دا لاندې مثالونه:

توريالي زما ليک ته لا تر اوسه ځواب نه دی ورکړی، دا ګومان مې نه شي چې  تر دې وروسته به ځواب ورکړي.

ده زيار وايست چې سنګ له ځانه سره ملګری کړي، مګر سنګ هېڅکله دا نه شوه منلای چې بې سببه د چا دښمنۍ ته ملا وتړي.

ب) يوه مقدماتي فقره له اصلي جملې نه جلا کوي، لکه:

د دې ترون پر اساس، غړي هېوادونه تعهد کوي چې په ښوونه او روزنه کې به له تبعیض نه کار نه اخلي.

تر ډوډۍ خوړلو  او لاس مینځلو وروسته دوی سینما ته ولاړل.

ج) معترضه جمله یا فقره د دوو کامو ترمنځ نیول کېږي.

زه به د خالي په ورځ، که خیر وي، تاسې کره درشم.

پښتو ټولنه باید د پښتو  لیکدود د یووالي لپاره چې په حقیقت کې د دې ټولنې د تاسیس یو عمده هدف دی، اوچت ګامونه واخلي.

د) د یو لړ مختلفو کلمو د جلا کولو لپاره، لکه:

ده خپل کتابونه، قلمونه، بکس او نور تدریسي لوازم له ځان سره واخیستل.

هـ) ددې لپاره چې جمله یا شعر غلط ونه لوستل شي، لکه دا لاندې مثالونه:

ما، ماما ته یو کتاب راوړ.

ماما، ما ته یو کتاب راوړ.

د رحمان بابا دا لاندې بیت وګورئ چې لومړی شکل یې سم او دویم شکل یې ناسم دی:

ډېر عزیز دي موم د  لان تر سنګدلانو
ته یو څاڅکی شه د اوښکو، ګوهر مه شه
ډېر عزیز دي موم دلان تر سنګدلانو
ته یو څاڅکی شه، د اوښکو ګوهر مه شه

و) د زرګونو او ملیونونو د بېلولو لپاره، لکه:

نومـوړي شـرکت پـه تېـر کـال کـې پنځـه دېـرش مليونـه (۳۵،۰۰۰،۰۰۰) افغانۍ خالصه ګټه کړې ده. د ده مياشـتنی معـاش ۴٦۲، ۵ افغانۍ دی.

يادونه: د ټلېفون نومره، د کوڅې نومره او تاريخي کلونـه کامـه نه غواړي.

۲- د ترلو او بندولو لپاره:

الف) په معترضه فقرو او الفاظو پسې بايد کامه راوړل شـي، لکـه: زما په عقيده، که ته موافقه کوې يا يې نه کوې، له همېنګوی سره په داستان ليکلو کې څوک سيالي نه شي کولای.

ب) تر منادي وروسته کامه راځي، لکه: زلميه، اجازه ده چې لـه تا نه يوه پوښتنه وکړم.

۳- د حذف شوي عبارت په ځای کې:

په دې کوټه کې څلور تنه کېني، په هغه بله کې پنځه تنه.

۷- ټکی(۰):

په ليکنه کې ټکی او کامه تر ټولو زيات استعمالېږي.

د ټکي د استعمال ځايونه په لاندې ډول دي:

۱- د بيانيه جملې په پای کې:

بريالی کور ته ولاړ.

لمر راوخوت.

۲- د نامخامخ پوښتنې په پای کې:

ده له مانه پوښتنه وکړه چې څه وخت به وزګار شم.

یادونه: په پښتو کې د مخامخ او نامخامخ پوښتنې ترمنځ څوک توپیر نه کوي او ډېر ځله د نا سم پوهاوي سبب ګرځي. پورتنۍ جمله د نالوستو ( بې تعلیمه) پښتنو په نظر داسې ده:

ده له ما نه پوښتنه وکړه: " څه وخت به وزګار شم".

۳- د مؤدبانه غوښتنې یا د یوه ملایم امر په پای کې:

په یوه مناسب وخت کې دفتر ته راشه او له ماسره په دې اړه خبرې وکړه.

خپل کار ته توجه وکړه او احتیاط له لاسه مه ورکوه.

مهرباني وکړه دغه فورمه ډکه کړه او بېرته یې راولېږه.

۴- د لنډیز او اختصار لپاره:

د م.م.م. سرمنشي وویل چې باید په منځني ختیځ کې دایمي سوله منځته راشي.

یادونه: م.م.م. د ملګرو ملتو د مؤسسې مخفف شکل دی.

۸- پوښتنه (؟) :

پوښتنه په لاندې ځایونو کې راځي:

۱) د مخامخ پوښتنې په پای کې:

ستاسو نوم څه دی؟

ته څه وخت هرات ته ځې؟

۲) د شک او تردید لپاره:

دی له خپلو همکارانو سره همدردي (؟) لري.

۳) د ټوکو او مسخرو لپاره.

۹- سیمیکولن یا ممیزه: (؛)

د ممیزې استعمال یو څه دقت غواړي. آسانه لار دا ده چې ووایو په اکثرو هغو ځایونو کې چې ټکي راځي ممیزه هم استعمالېدی شي. که چېرې دوی جملې چې تقریباً یو له بلې سره مساوي وزن او اهمیت ولري، څنګ په څنګ راشي د هغو ترمنځ ممیزه استعمالولای شو، لکه دا لاندې مثالونه:

موږ دوی ته دلیلونه وویل؛ خو دوی له موږ سره ملګرتیا ونه کړه او خبره یې راسره ونه منله.

په تېر کال کې حکومت د قاچاق مخه ونیوله؛ بډې خورو ته یې سزا ورکړه؛ اختلاس کوونکي یې محاکمه کړل؛ او د اجتماعي عدالت د تامینولو په برخه کې یې په هر اړخیزو اقداماتو لاس پورې کړ.

۱۰- درې ټکي (...):

درې ټکي په دې لاندې ځایونو کې راځي:

۱) په ارادي توګه دځینو الفاظو حذفول.

بشپړه جمله: ځینې خبرې باید واورېدل شي، ځینې خبرې باید په یاد کې وساتل شي او ځینې خبرې باید ښې تحلیل شي او فکر ورباندې وشي.

حذف شوې بڼه: ځينې خبرې بايد واورېدل شي، ځينې ... بايد په ياد کې وساتل شي او ځينې ... بايد ښې تحليل شي او فکر ورباندې وشي.

۲) د داسې نورو پرځای:

زه ډېر ملګري لرم: زمرک، بريالی، سنګ، غمی ... پښتو، دري، سنسکرېټ، انګلېسي ... آريايي ژبې دي.

۳) د نيمګړې جملې په پای کې:

د غونډې په لمن کې، د چينې ترڅنګه، د ونې تر سيوري لاندې ... زمری او غوټۍ څنګ په څنګ کښېناستل د راز و نياز خبرې يې شروع کړې...

۴) د تاکيد لپاره د وړو جملو بېلول:

دا کار نن وکړه ... معطلي مه کوه... سبا به پښېمانه شې.

۵) کله چې د بل چا قول رانقلوو، حذف شوي عبارتونه د درو ټکو په واسطه ښودل کېږي. که حذف شوی عبارت د جملې په پای کې راغلی وي او جمله ورباندې ختمه شوې وي څلور ټکي ايښودل کېږي، درې يې د حذف شوي عبارت پر ځای او يو ټکی د جملې د پای لپاره.

## ۱۱- نقلښه (( )) :

نقلښه په لاندې ځايونو کې استعمالېږي:

۱) د يو چا د خبرو نقلولو لپاره:

سنګ وويل: " موږ په جنګ هم پوهېږو او سوله مو هم زده ده."

یادونه: که د نقلنښو ترمنځ نقلنښې راشي هغه د مفردو نښو په بڼه لیکل کېږي، لکه:

زمرک وویل: " زه د انتون دا خبره نـه هېـروم چـې وایـي: زړه ورتوب، بیا هم زړه ورتوب، همېشه زړه ورتوب."

۲) که له یوه اثر نه څو پراګرافه رانقلېږي باید د هر پراګراف پـه سر کې نقلنښې راشي، لکه:

" په عراق کې عربي ویونکي پنځه ملیونه شپږ سوه پنځـوس زره تنه دي".

" په ترکیه، ایران او افغانستان کې عربي ویونکي اتـه سـوه دري دېرش زره تنه دي".

" په عربي متحد جمهوریت کې عربي ویونکي شپږ ویشت ملیونه اووه سوه پنځه دېرش زره تنه دي".

۳) د ویاند ( نطاق) د تغییر په حال کې:

په کیسو او ډرامو کې چې د خبـرو نوبـت بـدلېږي، نـو د نـوي ویاند خبرې معمولاً په نوې کرښه کې راځي او د نقل نښو ترمنځ نیول کېږي:

" خان میره، ما ګومان کاوه چې ته به څومره غیرتي سـړی یـې، مګر خبر نه وم چې ته ګیـدړ وختـې ... د خپـل لاس ټوپـک مـې درکړ چې ته به حیدر مړ کړې ... ".

" خان صاحب، له ځان سره به فکر وکړم. دلته خو زه څـوک نـه لرم چې مشوره او مصلحت ورسره وکړم".

۴) کله ليکوال ځانته خاصه اصطلاح وضع کوي، چې په محيط کې عموميت نه لري، لکه: دی " ګيډيالوجسټ" دی له خپلې ګيډې لغتونه وضع کوي.

۵) د تاکيد او توجه جلبولو لپاره:

"حق" ورکول کېږي نه، اخيستل کېږي.

٦) د مقالو عنوانونه:

په کابل مجله کې مې د " کنفرميزم" په اړه مقاله ډېره خوښه شوه.

۷) د تمسخر لپاره ځينې اصطلاحات دنقل د کړښو ترمنځ ليکل کېږي.

۱۲- **فاصله** (-) :

د فاصلې نښه په لاندې ځايونو کې راځي:

۱) د لنډيز لپاره: کله چې څو فقرې يومطلب توضيح کوي او ليکونکي وغواړي چې لنډيز يې په وروستۍ فقره کې ذکر کړي فاصله استعمالوي، لکه:

ملي يووالی، د خلکو سوکالي، اجتماعي عدالت، اقتصادي پرمختګ – دا ټول زموږ د نظام اساسي هدفونه دي.

۲) د بس کولو او سرته رسولو لپاره: د دې نښې په واسطه ليکونکی خبره پرېکوي. دغه ډول استعمال اکثره په محاوره کې ډېر راځي، لکه:

سنک ته قار ورغی او ورته ویې ویل؛ " ته اصلاً په خبره ځـان نـه پوهوې. ما درته ویلي وو-".

۳) دمداخلې لپاره: کله چې د یوه مطلب په منځ کې نوی فکـر راپیدا شي او پخوانی مطلب اخلال کړي، لکه: کوم وخـت چـې زه په کندهار کې وم – دا خبره مې مخکې درته کړې ده.

۴) د معرفۍ لپاره:

کوم شی چې زما په ذهن کې یـې توپـان راپورتـه کـړی دی – هغه عشق دی.

۵) د معترضه جملې لپاره:

که سنک دې ولیـده – کـوښښ وکـړه چـې ویـې ویـنې – ماتـه ټلیفوني خبر راکړه.

## ۱۳- ستوری (*):

د ستوري نښه اوس ډېـره نـه اسـتعمالېږي. پخـوا بـه سـتوری د حذف شوي عبارت پر ځای او د لمنلیک لپاره استعمالېده. اوس د حذف شوي عبارت پر ځای درې ټکي راځي او د لمنلیک لپاره د کلمې پر سر رقمونه لیکل کېږي.

سـتوری اوس هـم د تبصـرې او د توجـه د جلبولـو لپـاره استعمالیدی شي.

۱۴- غږ نښه (!):
د غږ ( ندا) نښه د هیجان، حیرانتیا، تاکید او امر لپاره راځي. چې یو قوي دلیل موجود نه وي، باید د دې نښې له استعمال نه ځان وژغورو. غږ نښه په لاندې ځایونو کې استعمالیږي:
۱) د تعجب، تاکید او هیجان د ځرګندولو لپاره:
سنک په رښتیا له خپلې وظیفې نه استعفا وکړه! څومره بې سنجشه کار!
ډاکټر وویل؛ " ته څومره خوشبخته یې! ستا او د مرګ ترمنځ فاصله ډېره کمه وه!".
۲) د امر او کلکې غوښتنې په حال کې:
ډېر ژر حرکت وکړه!
لطفاً زما په شخصي چارو کې مداخله مه کوه!
۳) د طنز او کټرې لپاره: دلته ندا نښه د نقل د نښو ترمنځ نیول کیږي چې مثالونه یې پخوا راغلل.

۱۵ - لویې لیندۍ [ ] :
په ځینو وختو کې لویې لیندۍ تر معمولي لیندیو مخکې راځي.
کله کله لویې لیندۍ د نقلنښو ترمنځ د لیکونکي د تبصرې لپاره راوړل کیږي، لکه:
برتراندرسل وایي: " دا چې فزیک په علت پسې نه ګرځي دلیل یې دا دی چې علت وجود نه لري. [ دا د رسل شخصي نظریه

ده تول فیلسوفان د دغه نظر ملاتړ نه کوي.] زما په عقیده علت..."([1])

## ۱۶- د ندایې او سوالیې مرکب شکل ( !؟):

کله کله ځینې لیکوال د ندایې او سوالیې علامې دواړه څنګ په څنګ د یوې جملې په پای کې راوړي، خو شرط په کې دا دی چې ندائیه به لومړی او سوالیه به ورپسې وي. په دې کې د لیکوال هدف دا وي چې د هغې په واسطه له یوې خوا د لوستونکي توجه جلبوي او له بلې خوا یې په کې پوښتنه غرض وي. په لنډه وینا ویلای شو چې د یوې ډېرې مهمې پوښتنې په پای کې د ندایې او سوالیې مرکب شکل راځي، لکه:

ته نه یې خبر چې د افغان انګلیس په یوې جګړه کې له پنځلس زره انګرېزي پوځ نه یوازې ډاکټر برایډن مړ ژواندی خلاص شوا؟

یا: ته نه پوهېږې د افغانستان د خلکو ملي پاځونونو د نړۍ سترې امپراتورۍ ړنګې کړي دي!؟

## ۱۷- درې ستوري ( *** ) :

دغه نښه معمولاً د ډرام یا داستان په یوه پرده یا برخه کې چې څو مفکورې په جلا جلا پراګرافونو کې څېړل کېږي، نو د هرې مفکورې تر پای ته رسېدو وروسته په یو خالي ځای کې درې ستوري ( *** ) ایښودل کېږي.

---

(۱) کاندید اکاډمېسین محمد صدیق روهي، د څېړنې لارښود، د افغانستان د سیمه ییزو مطالعاتو مرکز، ۱۳۸۵ ل کال، ( ۷۹ – ۸۹ ) مخونه.

**۱۸- وروځو ته ورته نښه({}):**

دغه نښه په پښتو او دري کې د ({) او په انګریزي او لاتیني کې په (}) بڼه راځي. په عمومي توګه هغه وخت استعمالېږي، چې دېوې کلمې په مقابل کې څو کلمې راشي، لکه:

| | | |
|---|---|---|
| انسان | } | پوه<br>ناپوه<br>کمزوری |

**۱۹- غشي ( ⇄ ):**

دغه نښه په عام ډول د مفهوم د لوري او طرف څرګندونه یا ښودنه کوي. په لیکنو کې معمولاً د دوو مقصدونو لپاره استعمالېږي:

۱- کله چې لیکونکی په توضیحي او تشریحي لمنلیک (حاشیه) کې کومه توضیح یا تشریح لیکي او په هماغه مخ کې یې لیکنه ځای نه شي، لازماً باید تر هغه وروسته مخ ته نقل شي نو د راغلې توضیح په اخرنۍ برخه کې د ( ⟵ ) غشي په راوړلو سره لوستونکي ته ښودنه کوي، چې نوره توضیح په راتلونکي مخ کې ولولي. په راتلونکي مخ کې تر توضیح لیکلو دمخه بیا هم (⟶) غشي نښه ایښودل کېږي چې لوستونکي ته وښیي دا توضیح له مخکني مخ څخه دلته راغلې ده.

۲-  د یوې ترکیبي کلمې د تجزیې او یا د څو جزونو د ترکیب ښودنې لپاره راځي، لکه: دوست + ي ←—— دوستي یا پوهن + تون ←—— پوهنتون.[1]

(۱) سید محي الدین هاشمي، دلیکوالۍ فن، ۱۳۸۳ ل کال، (۴۳- ۴۵) مخونه.

# وروستۍ يادونه

د يوې ژبې ليکنی سمون د يـوې ورځـې کـار نـه دی، دا يـوه اوږده مرحله او پروسه غواړي او د زمانې له تجربې څخه تېرېږي. پښتو ليکدود هم تراوسه پورې د زمانې د ازمون څـو پړاوونـه تېـر کړي. له نېکه مرغه په هر پړاو کې پـه پښتـو ليکـدود کـې سـمون راغلی، خو لا هم د يو داسې بشپړ پښتو ليکدود لپاره چې د پښتـو ژبې ټولې ليکنۍ اړتياوې لرې کړي، لاره پاتې ده.

ما د ( پښتو ليکني سمون) د ليکلو کار ځکـه پيـل کـړ چـې زه د خپل شلکلن فرهنګي کار په بهير کې له يو لړ داسې ليکنيو ستونزو او توپيرونو سره مخامخ وم، چې بايد حل لاره مو ورته پيدا کـړې وای. هغه څوک چې د چاپي رسنيو چارې، په تېـره بيـا ايـډېـټ (سمون) پرمخ بيايي، هغه ته پته لګي چې ليکـدوديزه ګـډوډي د چاپي رسنيو کار ته څومره زيان رسوي او چارې څومره سختوي. زما په څېر به نور په لسګونو پښتانه ليکوال لـه ورتـه سـتونزو سـره مخامخ شوي وي. د دې لپاره چې د دې ستونزو د حل لپاره مـو د کار يوه لړۍ پيل کړې وي او په دې بهير کـې مـو خپلـه ونـډه اخيستې وي، د دې اثر پر ليکلو مې پيل وکړ. دا اثر داسې نه دی چې د پښتو ليکدود او يا هـم ليکنـۍ بـرخې ټـولې سـتونزې دې اوارې کړای شي، بلکې که د سلګونو ستونزو لـه جملـې څخـه د څو ستونزو د حل لپاره مرستندوی شي بيا به هم زما لپاره يـو ښـه زېری وي.

زه هیله لرم د پښتو لیکني سمون یو غورځنګ پیل شـي او ټـول لیکوال په دې غورځنګ کې برخه واخلي، هر هغه لیکـوال چـې له کومې لیکنۍ ستونزې، تېروتنې او یا هم توپیر سره مخامخېږي، هغه دې د لیکنو او رسنیو لـه لارې نـورو ژبپوهـانو سـره مطـرح کړي. دا کار به د دې سبب شي، چې زموږ ټولې لیکنۍ سـتونزې د وخت په تېرېدو سره یوه پـه بلـې پسـې حـل او داسـې وخـت راشي، چې زموږ نورو نسلونو او یا هم هغه چاته چې پښتو ژبه زده کوي، په لیکنۍ برخـه کـې ټـولې سـتونزې اوارې شـي. لیـک او لیکنی سمون د یو تن او یـوه ژبپـوه کـار نـه دی، بلکـې دا یـوه اوږده پروسه ده او ډېر کار غواړي، خو زموږ لیکنـی سـمون بایـد دومره سست هم پرمخ لاړ نه شي، چې زړې ستونزې مو لا غوڅې کړې نه وي نورې نوې پرې را دبره شـي. یـو ځـل بیـا لـه ټولـو پوهانو او لیکوالو څخه هیله کوم چې په پښتو لیکني سـمون کـې پوره پوره ونډه واخلي؛ زموږ لیکنی سمون زموږ ژبنی سمون دی او زموږ ژبنی سمون بیا زموږ له ټولنیز سمون سره مسـتقیمه اړیکـه لري.

په هېواد کې دهر ډول مثبت سمون په هیله
پوهنمل محمد اسمعیل یون

# اخځونه


۱- اڅکزی، اودل سمد، پښتو ژبه او ليک دود ، کوټه ۱۹۵٦ م کال.

۲ - پنزل، هربرت ، د پښتو ګرامر، د محمد رحيم الهام ژباړه، ۱۳۴۰ل کال، دولتي مطبعه.

۳- خټک، خوشال خان، دستار نامه، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۴۵ کال چاپ.

۴- خوېشکی، محمد صابر، پښتو غږ پوهنه او ويپوهنه، ۱۳۸۰ل کال.

۵- رښتين، صديق الله، پښتو ګرامر (ژب ښودنه)، خاور خپرندويه ټولنه.

٦ - روهي، محمد صديق، د څېړنې لارښود، د افغانستان د سيمه ييزو مطالعاتو مرکز، ۱۳۸۵ ل کال.

۷ - زيار، مجارو احمد، پښتو سيندګی- نويزونه، د ساپي پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور، ۱۳۷۸ ل کال.

۸- زيار ، مجارو احمد، پښتو ليکلار ، ننګرهار پوهنتون، ۱۳٦۰ ل کال.

۹- زيار ، مجارو احمد، پښتو پښويه، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۸۲ ل کال.

۱۰- زيار، مجاوراحمد، ليکلارښود، دانش خپرندويه ټولنه، ۱۳۸٦ل کال.

۱۱- شاکر، پوهندوی نوراحمد، ژبنۍ څېړنې، ۱۳۵۰ل کل.

۱۲- صلاحي، محمد نبـي، د کوشـاني دورې د ژبيـو څېړنـه، د افغانستان د علومو اکاډمي، کابل، ۱۳۸٦ل کال.

۱۳– لودين، دولت محمد، لغت پوهنه، پښتو ټولنه، کابـل ۱۳۵۵ ل کال.

۱۴- هاشمي، سيد محي الدين، دليکوالۍ فن، ۱۳۸۳ ل کال.

۱۵- هلالي، څېړنـوال عبـدالحکيم، د پښـتو ژبـې د فـونيميکې الفبې لارښود، پښتو ټولنه، ۱۳۵۵ل کال.

۱٦- وزيری، بخت مير، غږ پوهنه او ويپوهنه، کابل پوهنتـون د ژبو او ادبياتو پوهنځي د نا پښتو ځانګو لپاره، ۱۳۸۴ ل کال.

۱۷ - وکيلي، محمدسرور، پښتو ګرښود، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز، پېښور، ۱۳۸۷ ل کال.

# Pashto Text Correction

Written
By:
M. Ismael Yoon


ISBN 978-9936-500-29-7
9 789936 500297 >

د خپرونو لړ: (۳۰)